# کندهار

نهم کال
۳ - ۴ گڼه
۱۳۸۹ ش

د کندهار د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست دوې میاشتنۍ خپرونه



استاد رشاد او پښتو نوی هنري - داستاني نثر

د علامه رشاد په څېړنیزه لاره کې د منابعو او ماخذونو علمي تحلیل او تجزیه




بسم الله الرحمن الرحیم



# کندهار

علمي، تاریخي، ادبي او ټولنیزه مجله


د امتیاز څښتن: د کندهار د اطلاعاتو او کلتور ریاست

**دریمه دوره**
**نهم کال، دریمه - څلرمه گڼه، پرله پسې ۵۴ - ۵۵ مه گڼه**
**زمری - لړم (۱۳۸۹ ش)**


**څو ضروري یادونې**

- کندهار مجله اسلامي او ملي گټو ته زیانمنې لیکنې نه خپروي.
- کندهار مجله د مجلې د ټاکنې لیکنې معیار سره سم د لیکنو په اصلاح کې د لاسوهنې حق لري.
- رااستول سوې لیکنې بیرته نه ورکول کېږي.
- هره لیکنه د لیکوال خپل نظر څرگندوي.

**په هیواد او دباندې کې د مجلې بیې**

هیواد: ۲۰ - افغانۍ

پاکستان: ۳۰ - کلداري

**کلنۍ گډون**

هیواد: ۱۲۰ - افغانۍ

پاکستان: ۲۰۰ - کلداري

نور هیوادونه: ۸۰ - امریکایي ډالره


مؤسس
محمد ولي زلمی

سرپرست چلوونکی
عبدالقدیم پتیال

کتنپلاوی
ډاکټر عبدالرازق پالوال
څېړونکی شېرشاه رشاد
حیات الله رفیقي
عبدالکریم طالب
فضل محمد پنهان

کمپیوټر چاري
اباسین افغان



پته
علامه حبیبي واټ
د اطلاعاتو او کلتور ریاست
د کندهار مجلې دفتر
ټلیفون: ۳۰۰۱۴۴۰

# فهرست

د اداري یادښت:

# رشاد پوهنه

(رشاد پوهنه) د هغې پراخې سلسلې، یا وسیع علم نوم دئ، چې د هغې په توسط سره کېدای سي، موږ د هېواد او سیمې د نومیالي عالم او لیکوال اروانباد پوهاند علامه رشاد رحمه الله علیه د علمي او اکاډیمیکو کارونو او فعالیتونو، آثارو، تالیفاتو او تصنیفاتو په باب د معلوماتو د لاسته راوړلو تر څنګ څېړنې او سپړنې وکړو.

دا کار به نه یوازې د علامه پوهاند رشاد رحمه الله علیه په اړه موږ ته هر اړخیز معلومات راکړي، بلکې تر څنګ به ئې نورو او نوو څېړنو او تحقیقاتو ته هم لاره هواره سي. د همدې هدف د لاسته راوړلو له پاره دا دئ، د علامه پوهاند رشاد رحمه الله علیه تر رحلت وروسته د وطن دننه او دباندې وخت پر وخت بېلابېل علمي او څېړنیز سیمینارونه جوړېږي، چې دا دئ سږ (۱۳۸۹ش) د افغانستان د جمهور رئېس جلالتمآب حامد کرزي د ځانګړي حکم پر اساس د هېواد په مرکز (کابل) کې یو پراخ څېړنیز او علمي سیمینار د نومیالي محقق استاد سرمحقق زلمي هېوادمل په هڅو او هلو ځلو سره د لوړو زدکړو په وزارت کې د دوو روځو له پاره جوړ سو، چې په ترڅ کې ئې د افغانستان د ډېرو لیکوالو او محققینو له لوري د سیمینار په مناسبت مختلفې مقالې وویل سوې.

د کندهار د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست همېشه په دې تلاښ کې دئ، چې د هېواد د نومیالیو د څه نا څه حق اداینې په منظور سیمینارونه جوړ کړي، آثار چاپ کړي او مختلفې غونډې جوړې کړي، چې نوی نسل مو د خپلو اسلافو د کارنامو، مبارزو، علمي فعالیتو او اکاډیمیکو هڅو په باب معلومات حاصل کړي او د یوه الهام په توګه د ځوان نسل او یا په ځانګړې توګه د ځوان مترقي قشر د اذهانو په لا تنویر کې یو ښه کردار ادا کاندي.

د اکاډیمیکو او تحقیقاتي مراکزو دا وړ تعامل به لا تر لږه وکولای سي، چې زموږ په دې پاشلې ټولنیز موقف کې د یوه جمعي اشتراک په توګه انتظام او انسجام را منځته کاندي.

همدغو ارمانو ته د تحقق موندنې لپاره دا دئ، د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست د (کندهار) تاریخي مجلې یوه لویه برخه د علامه پوهاند رشاد رحمه الله علیه د پورته یاد سوي سیمینار مقالو ته ځانګړې کوي او که خدای جل جلاله کول، دغه مقالې به په کتابي بڼه هم ژر تر ژره چاپ کړي.

د درانه او فاضل استاد روح دې خوښه او ښاده وي!

آمین

# د علامه رشاد په څېړنیزه لاره کې
# د منابعو او مأخذونو علمي تحلیل او تجزیه



څېړندوی شېرشاه رشاد

د علمي څېړني په میتودولوژۍ کې تر ټولو وړاندې د څېړنیزي موضوع په اړه د موادو پلټنه، راټولول او د هغو سپړنه او تجزیه ډېره اهمه برخه ده. د دغو منابعو څخه ګټه اخیستنه هم علمي صلاحیت غواړي، هم دقت او ژوروالی.

که دغه صلاحیت موجود وو، نو څېړونکی د موادو او منابعو کره او کوټه برخي راسپړلای سي او د کار وړ فاکتونه پکښي تثبیتولای سي.

زموږ په هیواد کې په ۱۳۱۱ ل کال د کندهار د ادبي انجمن او په ۱۳۱٦ ل کال د پښتو ټولني له جوړېدو راهیسي د پښتو ژبي او ادب او د پښتنو د تاریخ علمي – څېړنیز بهیر نوي پرمختللي پړاو ته او د دې پېړۍ په څلوېښتمو او پنځوسمو کلو کي خپل اوج ته ورسېدی.

په دې کلو کي ډېر مغتنم آثار وکښل سول او چاپ سول. خو پر هغو آثارو ډېره ویسا کېده، کوم چي د کتاب مأخذونه او منابع یې مؤثق، کره او معتبر ول او د دې پر څنګ د منابعو علمي او دقیق تحلیل او

تفسیر پکښې سوی وو، ځکه علمي څېړنیز ابجادات د هر څېړونکي شخصیت ښیي.

په طبیعي علومو کي هم د یو شي حقیقت او عینیت ځان ته ثرګندول پر تجربوي څېړنو ولاړ دئ. له نن څخه زر کاله وړاندي د ختیځ ستر حکیم علامه ابوریحان البیروني د دې میتود بنسټ ایښوونکی ګڼل کېږي، دی د خپل "الجماهیر في معرفت الجواهر" نومي اثر د زمردو په برخه کي کاږي:

"... د زمردو د ځانګړنو په اړه داسي ویل کېږي، چي زهر لرونکي ماران که زمرد ووینيږ ړندېږي او د شرق د ډېرو شاعرانو په شعرونو کي هم دا مطلب تر سترګو کېږي، خو د دې خبري رښتنوالی تجربې ښوولی نه دئ، ځکه ما (البیروني) خورا ډېري ازمویني سر ته ورسولې، مار ته مي د زمردو امېل ور په غاړه کی، د سودې په تل کي مي زمرد وپاشل او ماران مي ور واچول، د مارانو سترګو ته مي د زمردو پېیلي امېلونه و ښورول دا تجربې مي ټوله په نهو میاشتو کي په توده او سړه هوا کي سرته ورسولې، خو هیڅ اغېز او اثر یې ما پر مارانو ونه لیدئ".

د تحقیق او تتبع دغه ډول، چي پر "استدلال بل المقولات" نه، بلکي د "علم الیقین" پر اُصولو ولاړ میتود وي، په ادبي، ژبنیو او تاریخي پلټنو او څېړنو کي موږ په پنځوسمو کلو کي د علامه رشاد په آثارو کي وینو.

په ۱۳۵۰ ل کال کي علامه رشاد د پوهاندی د علمي رتبې له پاره په ګلشن روه کي د راوړتي د یوې تېروتني د څېړني موضوع د علمي پروژې په توګه انتخاب کړه.

څنګه چي تاسي ته ثرګنده ده راوړتي په انګلستان کي د پښتو څېړنو پلار بلل کېږي، په ۱۸۴۹ ع کال کله چي پرنګیانو د شمالي پنجاب په ګجرات کي سیکانو ته ماته ورکړه، د پښتنو د ځېلو له پاره تر اباسین راپوري وتل او راوړتي د یوه پوځي افسر په توګه د دوی مل وو.

ده د پوځي افسری پر څنګ د دې سیمي ژبي زده کړې او د دې خلکو د ژبو، تاریخ، انسابو او دود و دستور په اړه ئې مقالې او کتابونه وکښل، چي یو اوځار اثر ئې "ګلشن روه" نومېږي. دا اثر په ۱۸۶۰ ع کال کي لومړی پلا چاپ سو او د پښتو ژبي د نثر او نظم د منتخباتو درنه ټولګه ده.

د دې اثر د نثر په برخه کي له شپږو کتابونو څخه څو – څو پاڼي را اخیستل سوي دي، چي یو ئې په هغو کي د پښتانه شاعر بابو جان منتخبات دي.

علامه رشاد په ګلشن روه کي د دغه بابوجان د منتخباتو پر عروضي او قافیوي اړخ باندي څېړنه کړې ده او د عروضو د علم د اُصولو او ضوابطو د تطبیق په رڼا کي ئې د راوړتي دا ادبي تېروتنه په علمي میتود او مستند ډول ثابته کړې ده، چي د بابو جان منتخبات په ګلشن روه کي نثر نه دي، بلکي نظم دي.

یقین ته نژدې ګومان زما دا دئ، چي د

لوېديزوالو پوهانو او ختيځ پېژندونکو هر څه په پټو سترګو د منلو ګرغېږ ن دود زموږ د هيواد په علمي - څېړنيز ډګر کي د لومړي پلا له پاره د دغي پروژې له برکته مات سو او د دې خبري، تائيد زه د ارواښاد بېنوا صاحب په هغه نظر کي وينم، چي د دې پروژې په اړه يې ورکړی دئ، دی وايي: د شرقي تعامل او روش خلاف تا (رشاد) د راوړتې غوندي اوڅار او پېژاند غربي څېړونکي تېروتنه را برسېره کړه.

د دغي پورتنۍ علمي - پروژې پر څنګ د علامه رشاد د دغه تنقيدي څېړني يوه بله بولګه، د ده په ناچاپه آثارو کي د "تيروتني او تېر ايستني" په نامه يو اثر دئ. په دغه اثر کي هم د ډېرو مأخذونو متني کره کتنه سوې ده، د موضوع د عينيت او حقيقت د څرګندولو له پاره ئې اړوند مأخذونه ټول کتلي، څو د خبري رښتينوالی او يا تېروتنه را برسېره کړي.

دا اثر پنځه برخي لري: تاريخي تېروتني، لغوي تېروتني، ګرامري تېروتني، ادبي تيروتني او د غلط لوست يا غلط ضبط برخه.

زه به د خبرو د لنډولو له پاره يوازي له تاريخي او لغوي تېروتنو څخه يوه، يوه بولګه تاسي درنو لوستونکو ته وړاندي کړم.

د تاريخي تېروتنو په برخه کي دا پوښتنه، چي آيا د زمان شاه مور قزلباشه او د شهزاده همايون مور سدوزۍ ده؟ تر څېړنې لاندي نيول سوې ده.

د ۱۲۰۷ هـ س کال د ميانۍ د مياشتي پر دوهمه او د ۱۲۰۸ هـ س کال د محرمي پر نونسمه، چي د ۱۷۹۳ ع کال د جون له ۱۱ او د اګوست له ۲۷ سره سر خوري، له کابل څخه د لاهور د نمايندګۍ پر لار د ايسټ انډيا کمپنۍ ته په استخباريه اسنادو کي د زمان شاه مور قزلباشه ښوول سوې ده. د دې موضوع د حقيقت د څرګندولو له پاره علامه رشاد د فرانسوي مستشرق فېرر "History of the - (J.P Ferrier) Afghans" چي په لندن کي په ۱۸۵۸ ع کال کي چاپ سوی دئ، د قاضي عطا الله خان "د پښتنو تاريخ"، د ګانکوفسکي "د درانيانو امپراتوري"، د قاسم رشتيا "افغانستان په ۱۹ پېړۍ کي" د عزيز الدين پوپلزي "تيمورشاه دراني" او "درة الازمان" آثار کتلي او د پرنګيانو د استخباريه اسنادو دا تېروتنه ئې را برسېره کړې ده. حقيقت دا دئ، چي د زمان شاه مور يوسفزۍ ده.

برعکس "د پښتنو تاريخ"، "تيمور شاه دراني"، "درة الازمان" ښاغلي مؤلفين په دغه تېروتنه اخته سوي دي، چي د شهزاده همايون مور ئې سدوزۍ ښوولې ده. حال دا چي د شهزاده همايون د دربار يو مخلص کارداره حسين علي په ۱۲۱۸ هـ س کال د شهزاده همايون په اړه يو کتاب ليکلی دئ، چي "زيب تاريخ ها" نومېږي. په دې کتاب کي ئې د شهزاده همايون مور د پيرمحمد خان غجر (قاچار) لور يا لمسۍ ښوولې ده، پير محمد خان د افشار نادر له اميرانو څخه وو او د نادر په

وختو کي د هرات بيګلربيګي وو.

احمد شاه بابا د ده لور يا لمسی تيمور شاه ته، چي دغه مهال، د هرات والي وو، ور وغوښتله، همايون په ۱۱۷۶ هـ س کال په هرات کي وزېږېدی.

د پرنګيانو د استخباريه اسنادو د ترپوتنو د تثبيت له پاره علامه رشاد د پېښي مهال او ځای ته تر ټولو نژدې سند او منبع د مؤثق او معتبر مأخذ په توګه راوړی دئ، چي د تاريخي څېړونو په ميتودولوژی کي منلی او د پام وړ ميتود دئ.

د لغوي ترپوتنو په برخه کي علامه رشاد په ځينو فرهنګونو (قاموسونو) او يا مقالو کي د ځينو لغتونو په اړه څېړنه کړې ده، چي په دې څېړنه کي د ترپوتني وجوهات هم ښوول سوي دي، په ځينو کي غلط ضبط، د ځينو دا د معنا غلطی، په ځينو کي قلب، تصحيف او تحريف پېښ سوی دئ. د بولګي په توګه دلته د "ترپوتني او تېر ايستني" د اثر د لاس کښلي نسخې په ۱٦٦ مخ کي "غونډ ژبی" لغت را اخلو. علامه رشاد کاږي:

"... دوست شينواري د کابل مجلې د ٦٥۷ ګڼې په ۱۵ مخ کي کښلي دي: غونډ ژبی د فصيح او بليغ معنا لري او په سند کي يې د رحمان بابا دغه بيت راوړی دئ:

د غونډ ژبو شاعرانو د خولې نه دئ
ځکه هسي رنګ خطا دئ دا حديث "

د دې لغت د څېړني له پاره علامه رشاد په قاموسونو کي ظفر اللغات، لس زره لغات، پښتو قاموس، پښتو روسي قاموس او د رحمان بابا په ديوانونو کي يې د ارواښاد استاد بېنوا په زيار اوډل سوی د کابل چاپ دېوان، د خپل کتابتون قلمي نسخه، د ارواښاد حمزه شينواري له خوا په اردو ژباړل سوی دېوان، ټول کتلي او د څېړني نتيجه يې د ترپوتني له علت سره په خورا ظريفو الفاظو داسي کښلې ده:

"... د دوست شينواري خطا له خطا څخه پېښه ده، د رحمان بابا دغه بيت چي دوست شينواري استناد پر کړی دئ، اصلي بڼه يې داسي ده:

د غونډ ژبو شاعرانو د خولې نه دئ
ځکه هسي رنګ صفا دئ دا حديث

د رحمان بابا په دې بيت کي دوست شينواري د "صفا" کلمه "خطا" لوستې ده او د غونډ ژبي" په معنا کي تيروتلی دئ.

"غونډ ژبی د هغه چا صفت دئ، چي بلاغت او فصاحت ونه لري او وينا يې سليسه، روانه او صفا نه وي، د ږغونو ادا هغسي نه سي کولای، څنګه چي ښايي او په "تُري"، "تُرتُري"، "الکن" او "کلوله ژبان" معنا سوی دئ.

دا پورتنی بولګې ښيي، چي علامه رشاد په خپله علمي څېړنه کي څونه دقت، د فکر ژور والی، باريک بيني او د ډېر کار زغم درلود. د دوی يو بيت دئ:

د تندي تودې خولې دي، د لاســـو روڼې تناکي
چي خيري د غرونو کومي او راباسي ترې کانونه

استاد بختانی د دوی د څېړني په اړه وايي:

"... د علامه رشاد تحقيق، واقعاً د

تحقیق د لغت یو عملي شکل دئ، یعني ځان حقیقت ته رسول".

علامه رشاد د خپلې څېړنې د علمي او مستندي پایلې له پاره د څو ژبو مأخذونه او منابع کتل او په لوړ علمي صلاحیت سره ئې د هغو منابعو علمي سپړنه (تحلیل) او تفسیر کاوه، پر موضوعاتو ئې خپل علم راوستی او د کره کتنې په برخه کې ئې د تېروتنې معروضیت او عینیت دواړه څرګندول، یوه خبره ئې هم بې سنده نه راوړله.

د دې بحث د پای د خبرو په توګه د علامه رشاد دغه توصیه لازمه بولم، چې دلته راوړل سي:

"... هغه پښتو متنونه، چې زموږ لاس ته را رسېږي، له ډېرو لحاظونو د زمانې له آفتونو څخه خوندي نه دي پاته، د ځینو پښتنو شاعرانو (او لیکوالو) د سواد کمزوري، د نورو ژبو په ویونکو د متنونو کښل. د نا اهلو کاتبانو بې غوري او شخصي اجتهادونه، له زړو متنونو سره بې ځایه پېرزوینه، سموني او بې باکي، د پښتو ژبي له ادبي ښکلي ګلشنه څخه د غنو ګڼ ځنګل جوړ کړی دئ. دا ځنګل بیرته په ښکلي ګلشن اړول، زړه سوانده باغوان او د پیرزویني څښتن غواړي".

هلیه لرم زموږ د هیواد ځوان څېړونکي د علمي څېړونو په ډګر کې او بالاخص د مأخذونو او منابعو په لوستنه او کره کتنه کې د علامه رشاد علمي – تحلیلي لاره پسې وپالي او د خپلو څېړنو د لاري ډیوه ئې وګرځوي.

**د دې مقالې له پاره دا کتابونه کتل سوي دي:**


۱. علامه رشاد، په ګلشن روه کي د بابو جان منتخبات نثر نه دي، کندهار، ۱۳۸۵ ل کال.
۲. علامه رشاد، تېروتني او تېر ایستني، ناچاپه اثر.
۳. زلمي هیوادمل، د ادبي تاریخ میتودولوژي، پښتو ټولنه، ۱۳۶۷ ل کال.
۴. شېرشاه رشاد، د علامه البیروني منرالوجیکي نظریات او د هغو ....، د البیروني نړیوال سمپوزیم ته، ۱۳۷۰ ل کال. کابل.
۵. کندهار مجله، ۱۳۸۴ ل کال – ۲۶ – ۲۷ ګڼې.


* * * * *

## د خوراک او څښاک آداب

۱. په بازار کي له خوراک کولو څخه ځان وژغورئ همدارنګه په لار کي هم خوراک کول ښه کار نه دئ باید ډډه ځني وکړئ (اداب الصالحین).
۲. په خوراک کي چي څومره لاسونه یو ځای او جمع سي همدومره برکت پکښې زیاتېږي (مشکوة).

# استاد رشاد او پښتو نوی هنري - داستاني نثر



م. زرين انځور

د پښتو د معاصرو ادبیاتو د ځېړني په لړ کي نوی ادبي هنري او داستاني نثر یو داسي ځپرکي دئ چي له ځو اړخونو څخه پاملرنه غواړي. دغه ډول نثر زموږ په نویو ادبیاتو کي د یو نوي تمایل د نوي ځرک په توګه داسي ګڼل کېدای شي چي ژبه له کړکېچ، پېچلتیا او تصنع څخه را جلا کوي، روانه او ساده بڼه ورکوي، د ولس ژبي ته ئې نوره هم ورنژدې کوي او د دې په ځنګ کي ئې په زړه پوري کوي، خو ړوي ئې او شات پکښې ګډوي.

له بلي خوا دغه نوي نثرونه د موضوع له پلوه، د وخت نوي موضوعات او مفاهیم په خپله ځولۍ کي رانغاړي، بنسټیزو ټولنیزو، رواني او سیاسي موضوعاتو ته په خپله غېږ کي ځای ورکوي، خو ادبي ښایست ئې له یاده نه باسي، همدارنګه د دغه ډول نثر د ارزښت یو بل اړخ دا دئ چي د یو منظوم لیکني او ګړني بهیر د پراخي عنعنې په خوا کي د یو ډول ادبي - هنري نثر دودول او د نظم په

څنګ کې د نثر خوا ته بنسټیزه پاملرنه، د دغه منثور یون یوه د ارزښت وړ ځانګړنه باید وګڼو.

استاد پوهاند عبدالشکور رشاد د افغانستان د نویو ادبیاتو د هغو مخکښانو په لړ کې راځي چې د نورو پراخو علمي - ادبي هلو ځلو په لړ کې ئې پښتو نثر ته هم خاصه پاملرنه وکړه او د معاصر هنري - داستاني نثر په دودولو کې ئې ځیله ونډه لرله.

لکه چې ښاغلی سرمحقق هیواد مل د پښتو پر نوي نثر د خبرو په لړ کې لیکي: "د روښانتیا د پړاو په وروستیو نثر لیکونکیو کې ځیني د افغانستان برجسته سیاسي، اجتماعي او فرهنګي شخصیتونه دي او ځیني یوازې د فرهنګ په ساحه کې دومره ځلېدلي دي چې که د دوی تعلیمي او د ودي شرایطو ته سرې وګوري او په مقایسي ډول ئې د ځیلو ګاونډیو هیوادونو له لیکوالو او فرهنګیانو سره پرتله کړي نو دا به ورښکاره سي چې دوی په دغسي یو چاپیریال کې ډېر څه پښتو ته ورکړي دي. په دغو یادو ښویو کسانو کې د ارواښاد لوی استاد پوهاند عبدالحی حبیبي، ارواښاد استاد خادم، ارواښاد استاد بېنوا، ارواښاد استاد الفت، پوهاند صدیق الله رشتین، پوهاند عبدالشکور رشاد او ارواښاد محمد ګل نوري کارونه د کمیت او د وخت شرایطو ته په پاملرنه د کیفیت له نظره هم ډېري ښېګڼي لري. په دغو کسانو کې له ارواښاد نوري پرته نورو ښپړو سرو د نثر لیکني ځانته پیاوړي سبکونه ایجاد کړل، چې د هر یوه سبک ځیلي ځانګړني لري او پر اینده ګانو ئې ډیر اثرات دي[1]".

سره له دې چې استاد رشاد ځیله اساسي پاملرنه څېړنیزو او علمي برخو ته اړولې ده، خو ادبي نثر ته ئې هم د ادبي کار یوه برخه ځانګړې کړې ده، استاد د نظم او نثر په برخه کې د کار په اړه په ځیله یوه مرکه کې داسي اشاره کړې ده: "... په پښتو کې د نثر برخه نسبت د نظم برخې ته ضعیفه ده او نظم ډېر دئ، پراخ دئ، اکثریت زموږ لیکوال د نظم خواته هڅه کوي خو د نثر په خوا کې د تحقیقي مسایلو په برخه کې استفاده کېږي. زه داسي فکر کوم چې توازن دي د دې په منځ کې موجود وي، البته داسي منظوم اشعار موږ لرو چې هغه ظاهراً نثر دي خو په حقیقت کې شعر دئ... دغسي نثرونو ته هم ضرورت لرو چې هغه باید په ژبه کې زیات او ژبه پرې غني سي[2]".

استاد رشاد د پښتو نثر د پیاوړتیا لپاره یو شمېر کارونه تر سره کړي دي. د نړۍ له ادبیاتو څخه ئې ځیني ادبي ژباړې هم کړې دي. د تولستوی درې نکلونه ئې په پښتو ژباړلي، دغه اثر په ۱۳۳۹ لمریز کال کې خپور شوی دی[3].

د ټاګور د څو اثارو ژباړه او یو شمېر نوري ژباړې ئې هم کړې دي[4]. دغه راز ئې ځیني ادبي نثرونه هم په بېلا بیلو وختونو کې لیکلي او د هیواد په مطبوعاتو او له هیواده بهر افغاني

مطبوعاتو کي وخت پر وخت خپاره شوي دي. په دغو نثرونو کي ادبي توتې او طرحي هم شته او داسي نثرونه هم شته چي يو ډول داستاني طرحي دي او کولای شو چي په لومړنيو حکايوي - داستاني نثرونو کي ئې وشمېرو.

د دغه ډول نثرونو يوه بېلګه د استاد رشاد له لومړنيو منثورو بېلګو څخه را اخلو چي "جکي مانۍ او ورېښميني جامې" نومېږي او داستاني نثر په توګه کښل سوى دي: "نور څه نه وو، صرف د مستيو بې واکو قهقهو چي کله به د نڅا يو سپک مګر زړه پاڅوونکي شرنګ او کله به د خوږو نغمو يوه نرۍ په پرده نغښتې مګر زړه وړونکې ازانګه هم په ګډېدله، د هوا څپې سره رپېدولې. هلته د دې عيش او طرب په شخول کي يو مړ ژواندى ژګېروى چي کله به د "خيل لاولئ" (خير راوړئ) رپېدونکى معصومانه غږ هم ورسره وو، د هوا څپو ته سپارل کېده. دا غوڼاشکې د يوه خوار ژواکي واړه ماشوم وې چي د ترورمۍ د شپو د تېر ماخستن په توره درېبله کي له يخه ګېڼۍ اخيستي وو او له ترغوني ماښام څخه د يوې وچي سرې ګولې په نامراده هيله د جګي مانۍ په لوى ترلي وره پوري زنګېده. د يتيم ماشوم اواز د استرحام له ډېرو نارو څخه درېدلى وو، بږغ ئې تر خوله نه خوت، د وروستي ځل لپاره لوږي او يخ مجبور کړ. په داسي حال کي چي ستوني ئې له غريوه ډک کېده او ساه ئې په سينه کي نښتله، د خپل وروستي بږغ سره ئې لوڅه ککرۍ د جګي مانۍ په کلک درشل نښتله، د "خيل لاولئ" (خير راوړئ) سره ئې لوڅه ککرۍ د جګي مانۍ په کلک درشل ونښته.

په دې ترخ کي يوه بېوزله ښځه چي په څټکو مګر بې سيکه ګامو او په لټوونکو مګر رنځورو کتو ئې يو جدي تلاښ او طلب څرګنداوه، دغې خوا ته راورسېدله، په خورا تپاک ئې وروځغستل او هغه نيم بربنډ لاس ئې په خورا مينه په زړه پوري ټينګ ونيو، چي مخ ته ئې وکتل، ناڅاپه ئې يوه سوې کريږه تر خوله وختله او په داسي حال کي چي شونډان ئې له ژړا مرۍ مرۍ کېدل، وويل: خواره کونډکۍ مور دي ترتا وګرځي، هغسي دي ځان تر خپلي معصومي ناپوهۍ جار کړ چي سړي دي په جګو مانيو او زړونه دي په ورېښمينو جامو کي پلټل![5]".

د استاد رشاد نثرونه د يو شمېر ځانګړنو لرونکي دي چي کېداى شي په تفصيل سره خبري پرې وشي، خو په لنډيز سره به ئې يو څو اړخونو ته اشاره وکړو:

۱ - د استاد رشاد نثر د افغانستان په معاصرو پښتو نثرونو کي، د نويو ادبي هنري ځانګړنو لرونکى دئ. په دغو نثرونو کي لکه د دې دورې نو ډېر نثرونه چي ليدل کېږي رواني او سادګۍ او يو ډول هنري ښکلا، د خپل وخت او د ادبي - هنري ارزښتونه په پام کي ساتلو سره، راتر سترګو کېږي. موږ بايد دغو نثرونو ته د خپل وخت د آثارو په توګه وګورو او هنري - ادبي ارزښتونه ئې هم بايد د معاصر

ادبي بهير د پېلامې د اثارو په توګه و ارزوو.
۲ - د استاد په ادبي - هنري نثرونو کې هم کله کله د هغوي د ژورو علمي - تحقیقي اثارو په څېر يو څه د نثر دروندوالی لیدل کېږي او د تحقیقي نثر سیوری پرې سرې لیدلی شي. ښایي همدغه ټکي وي چې ارواښاد استاد رښتین په دغو نثرونو کې د يو شمېر نا اشنا لغتونو کارول يا د کړي دي[٦]. په تېره بیا په زماني لحاظ، د استاد په لومړنیو نثرونو کې دغه د تحقیقي نثر دروندوالی يو څه زیات لیدل کېدای شي. په ادبي نثر کې دا ډول ثقلت ښایي کله کله د نثر ښایست هم زیمانمن کړي.
۳ - د استاد په دغو نثرونو کې موږ ته د حکایتي - داستاني نثرونو لومړنۍ بېلګې هم راتر سترګو کېږي. په دې توګه نو د استاد رشاد ځیني هنري نثرونه د پښتو په لومړنیو نثري معاصرو داستان ډوله يا کیسه يي نمونه کې شمېرل کېدای شي.
۴ - د موضوع له پلوه په دغو نثرونو کې د وخت پر مسلطو حالاتو نیوکه او انتقاد لیدل کېږي او نور ټولنیز - سیاسي مسایل هم په جرئت او صراحت سره راڅرګندوي.
دلته به د يوې نمونې په توګه د استاد عبدالشکور رشاد يو داسي وروستنی نثر وړاندي کړو چې هم د هغه د زړه ور صراحت څرګندویه دئ، هم د داستان ډوله نثر نمونه ده او هم د هغه د وروستیو نثري ځانګړنو ښودنه کوي. دغه نثر استاد رشاد د ژوند په وروستیو کې کښلی دئ: "ښاغلی استاد عبدالرؤف بېنوا دي خدای وبخښي، کله چي په لیبیا کي د افغانستان لوی سفیر وو، په دوو دريو هفتو کي ئې يو لیک ماته رالېږه. په دغو لیکونو کي ئې په يوه لیک کي داسي کښلي وه: په لیبیا کي د افغانستان سفارت دوه پوړيز دئ. په دوهم پوړ کي زه اوسم او په لاندي پوړ کي د افغاني سفارت دفتر دئ. يوه ورځ سهار وختي د پلي ګرځېدو په نیامت زه د سفارت انګړ ته راکښته سوم. که ګورم د سفارت په انګړ کي يو سپی په شکو کي غزېدلی دئ او خپلي شیني ګروي. زه ورو ورو ورنژدې سوم او په خښم مي ورته وویل: ته نه پوهېږي چي دا د افغانستان سفارت دئ. وزه ! ژر وزه کنه... سپی له ځایه ونه خوځېده، هسي ئې داړي راته سپیني کړلې، خو راته وئې نه غپل، ما ته نور هم خښم راغی. ګومان مي وکړ چي راباندي وئې خندل. بیا مي له ځانه سره وویل: پېژندلی ئې نه يې، دا مردار خور نه پوهېږي چي زه په لیبیا کي د افغانستان لوی سفیر يم. په تلوار د سفارت د ودانۍ لوړ پوړ ته وختلم. هلته مي د ډیپلوماتانو دریشي واغوستله، نیکټایي مي وتړله، د سر وړښتان مي ږمونځ کړل او څه کلونیا مي هم په غاړه پوري وموښله، په ډیپلوماتیکو ادابو راکښته سوم. دا پلا مي په ډېر خښم پر سپي ږغ وکړ: اوس خو به مي پېژني چي د افغانستان سفیر يم. زه

حکم کوم ژر وزه! دا د افغانستان سفارت دئ، نه ستا کوډله. سپي دا پلا په خښم راته وغپل او په غپا کي ئې په خورا بې پروايي راته وويل: ته که داسي مېړه يې، خپل ملک ته ولاړ سه. هلته سره سپي لنګه سوې ده او کوتريو ئې ستا ملک پر سر اخيستی دئ، که ته غيرت لرې، هغه سره سپي له خپلی مېني وباسه او کوتري ئې پسي واخله، ما چي د سپي له خولي دا سپکي سپوري واورېدلې، ډېر خړ سوم، ژر مي سپي ته شا وروګرځوله او د سفارت لوړ پوړ ته مي په ختلو پېل وکړ. په زينو کي چي ختلم، اوښکي مي پر مخ رابهېدلې، په خپله خونه چي ننوتلم، د ملک پر بده ورځ مي ډېر وژړل. اوس که ښاغلی استاد بېنوا ژوندی وای او د افغان سفارت له غولي څخه ئې د ليبيايي سپي د ايستلو هڅه کړې وای، هرومرو به ليبيايي سپي په توصيفي ترکيب کي د سرې پر ځاې "توره" کلمه د صفت په توګه کار کړې وای[۷]".

د استاد يو شمېر پاشلي ادبي – هنري نثرونه په هغه ټولګه کي هم راغلي دي چي په ۱۳۸۴ل کال کي د علامه رشاد اکاډيمی له خوا خپره شوې ده. په دغه اثر کي ۲۳ ادبي – هنري نثرونه او اووه ادبي هنري ژباړي خپرې شوي دي. په دغو نثرونو کي د استاد داسي نثرونه هم لوستلی شو چي داستاني رنګ لري او موږ کولای شو چي د پښتو داستاني نثر په څېړنه کي ئې مطالعه کړو[۸].

استاد پوهاند عبدالشکور رشاد دغه د معاصر پښتو ادب درنه څېره، د هيواد له وياړونو څخه يو وياړ دئ، پر ګور ئې د نور بارانونه شه!

**لمن ليکونه او څرګندوني:**


۱. هيواد مل، سرمحقق زلمی، د پښتو نثر اته سوه کاله، د لاهور چاپ ۱۹۹۶ع، (۶۶۴ – ۶۶۳) مخونه.

۲. ګريت (مجله) لومړی کال، شپږمه ګڼه، ۱۳۷۹ زمری – وږی، (اوس هم وينښ ځلمی يم) د اکاډيمېسن پوهاند رشاد سره د ويس وردک مرکه (۷۲) م.

۳. بېنوا- عبدالرؤوف، اوسني ليکوال، لومړی ټوک، کابل، ۱۳۴۰ل، (۴۶۳) م.

۴. روهي، محمد صديق، د پښتو ادبياتو تاريخ (معاصره دوره) پېښور، د محمد صديق روهي فرهنګي ټولني خپرونه، ۱۹۹۹ع، ۱۳۷۸ (د سرمحقق زلمي هيواد مل له نښلونو څخه) (۱۴۴) م.

۵. بېنوا، عبدالرؤوف، اوسني ليکوال، لومړی ټوک، (۴۶۶ – ۴۶۵) م.

۶. رشتين، صديق الله، د پښتو نثر هنداره، پېښور يونيورسټي بک اېجنسي (۴۶۶) م.

۷. هيله (مجله) پنځم کال، لومړی ګڼه، ۱۳۸۰ل (وری – غويی)، (توره،...) پوهاند عبدالشکور رشاد. (۵ – ۶ مخونه).

۸. رشاد، پوهاند عبدالشکور، ادبي نثرونه، د بېنوا ياد، د کارنامو مېرمني، د ګلو ګېډی، کندهار، علامه رشاد اکاډيمي، ۱۳۸۴ل.

# پوهاندرشاد د تاریخ لیکنې په ډګر کې



پوهنوال رسول باوري
د اجتماعي علومو د پوهنځي استاد

د اکاډیمیسن پوهاندرشاد په قلم لیکل سوي یو شمیرارزښتمن تاریخي آثار راپاته دي، چي هر یو ئې د خپل ډول له مخي خورا مهم او ځانګړي دي. یو شمېر دا تاریخي آثار لکه لودي پښتانه، ډیلي د پښتنو په وخت کې؛ درباره نظامنامه اکبري و ناظم آن: کوروش، د قیصه خوانۍ خونړۍ پېښه، څوارلس کلن غازي حاتم او یو شمېر نور د هغه په ژوند کي چاپ او خپاره سول او یو شمېر نور تاریخي آثار لکه د کندهاریادابنتونه، حافظ الملک رحمت خان بړېځی، احمدشاهي شهنامه، ګل محمدخان غوریا خېل بابړ، غالب جنګ غازي نواب احمدخان او د هغه کورنۍ، ملي اتل غازي وزیر اکبر خان، د افغانستان تاریخي جغرافیه او دا ډول نور تاریخي آثارو ته په پام استاد رشاد د هغو نامتو مؤرخینو په شمېر کي راځي چي زموږ په هیواد کي د ګوتو په شمېر دي.

د تاریخي آثارو د پېژندني او د هغو په اړه د رایي څرګندوني له پاره تر ټولو لومړنی پړاو د هغه تاریخي اثر د لیکوال او یا مؤرخ د ذهنیت او لیدلوري پېژندل او پوهېدل دي، دا

چي نوموړی مؤرخ کومو اندونو او ځانګړو افکارو ته ژمن او یا لږ تر لږه له هغو څخه اغېزمن سوی دئ؟ د شک پرته اکاډیمېسن رشاد هم د خپلو تاریخي لیکنو له پاره معنوي مودل او ذهني لاربښود درلود، هغسې چي استاد رشاد د لودي پښتانه نومي اثر په سریزه کي لیکي:

"په نړۍ کي له لرغونو زمانو دا دود دئ چي ملکونه، اولسونه، کامونه، کورنۍ، او حتی شخصیتونه لوړېږي، ځوړېږي، ودانېږي، ورانېږي، وړېږي، واک مومي، بېواکه کېږي، ژوند مومي او محوه کېږي، دا ټولي اوښتني (تغیرات) ځانته سببونه لري، د دغو سببونو پلټنه او ګروېږنه او د هغو د اغېزو او نتایجو څېړل او ښتل د تاریخ غایه ده".

دا د اسلامي نړۍ تر ټولو ستر مؤرخ او فیلسوف ابن خلدون د نظریاتو یوه برخه ده.

عبدالرحمن ابوزید ابن خلدون په اتمه هجري پېړۍ کي ژوند کاوه، په تونس کي وزېږېدی، په تونس، هسپانیا او مصر کي تر بېلابیلو اداري او سیاسي دندو وروسته ئې د ژوند تر ورستیو کلونو د الازهر په پوهنتون کي د الهیاتو، فلسفې او اسلامي تاریخ د استاد په توګه دنده تر سره کول.

د ابن خلدون څخه په لسګونو تاریخي، فلسفي او دیني کتابونه په میراث پاته دي، خو د (ابن خلدون مقدمه) په نوم اثر نړیوال شهرت ګټلی دئ، په دې اثر کي د تاریخ او ټولنپوهني په تړاو د نوموړي اندونه خپاره سویدي.

د ابن خلدون نظریاتو نه یوازي د اسلامي نړۍ د مؤرخینو پر افکارو اثر ښندلي وو، بلکي د نړۍ پر بېلابېلو فلسفي او تاریخي ذهنیتونو ئې داسي اغېزې پرېښي، چي یو شمېر ئې متاثره کړي او یو شمېر نورو

بیا د خپلو افکارو د تدوین له پاره نامتو ټولنپوه اګست کنت او په ځانګړي ډول د شلمي پېړۍ انګلیسي نامتو مؤرخ او فیلسوف ارنولد تاینبي یادولای سو، چي په علمي کړیو کي ئې د (تمدنونو د انحطاط فیلسوف) په نوم زیات شهرت وګاټه.

د ټولني دایروي وده چي د ابن خلدون له نظریاتو څخه راپېل سوې ده، په اوس مهاله بېلابېلو ایزمونو، سیاسي او ټولنیزو مسلکونو کي په یو یا بل ډول کارول کېږي.

پوهاند رشاد هم د ابن خلدون نظریو ته ژمن پاته سوی او د تاریخ لیکني هغه میتود ئې کارولی چي ریښې او جرړي ئې د ابن خلدون په نظریو کي له ورایه ځرګندي دي.

ډېرو شنونکو د علامه رشاد په اړه دا خبره منلې چي هغه هیڅ یوه کرښه د کاغذ پر مخ نه راکښل څو چي د هغې په اړه به ئې باور او ډاډ نه وای حاصل سوی.

همدا وینا د استاد رشاد د نورو ټولنیزو علومو تر څنګ په تاریخي څېړنو کي هم په پوره ورتیا ځرګنده ده.

د دې وینا د ثبوت او د خپلي مقالې د لیکلو له پاره مي د پوهاند رشاد د نورو تاریخي کتابونو څخه د لودي پښتانه په نوم تاریخي اثر چي د ۴۲۵ پاڼو په لرلو په هند کي د لودي کورنۍ بشپړ تاریخ دئ، او هم مي د یوې بېلګې په توګه د نورو تاریخي مقالو څخه په لس مقالې نومي کتاب کي د (د کرلاڼیو پاچاهي کورنۍ) د بحث له پاره ټاکلي دي.

په تاریخي آثارو کي هغه لیکنه یا کتاب د زیات باور وړ ګرځي چي د تاریخي څېړنو ټول ارونه پکښي کارول سوي وي.

د دې ارونو څخه یو هم د باوري منابعو او لاسوندونو څخه ګټه اخیستنه ده چي د پېښو د تصدیق او سپیناوي له پاره کارول

کېږي.

استاد رشاد په لودي پښتانه او هم د کرلانیو پاچاهي کورنۍ په اړه د هري پېښي او هري وینا له پاره لاسوند وړاندي کړی او هره وینا ئې د مأخذ په مرسته د منلو وړ ګرځولې ده.

د دې ادعا د ثبوت له پاره د لودي پښتانه، تاریخي اثر د متن هر پاڼه لوستونکي ته د داړ څرګند لاسوند دئ.

**د بېلګي په توګه: په ۷۹ نمبر اویایمه** پاڼه کي چي د سلطان بهلول د رُسېدلو په اړه سرلیک پېلېږي ورسره سم د بېلابېلو مأخذونو او لاسوندونو یادونه کوي، د خورشید جهان؛ شوکت افغان او د نورو آثارو بېلابېلي پاڼي رایادوي، چي د نوموړي مطلب د کره کولو له پاره تر ټولو ډاډمن اخځونه دي او دا مېتود د لس مقالې نومي اثر په بېلا بېلو برخو کي هم په پوره ځیرتیا کارول سوی دئ.

د برلاسو تاریخي څېړونکو یوه ځانګړتیا دا ده چي د پېښو پر مهال لیکل سوو آثارو ته پوره پام اړوي او د لومړي لاس منابعو په توګه د هغو آثارو څخه زیاته ګټه پورته کوي چي د پېښي مهال ته نژدې او یا پر یوه مهال وي، پوهاند رشاد هم د برلاسو مؤرخینو په څېر د لودي پښتانه په اړه زیات هغه آثار او منابع کارولي چي د هغه مهال لیکوالو لیکلي دي، لکه: مسالک الممالک (اصطخري) کتاب الهند: (البیروني) زین الاخبار (عبدالحی ګردیزي) حدود العالم. تزک بابري (بابرنامه)، طبقات ناصري (جوزجاني) او داسي نور په لسګونو کتابونه یادولای سو.

په تاریخي څېړنو کي یوه بله ستره ځانګړتیا دا ده چي د یوې ادعا له پاره د یوه مأخذ وړاندي کول بس نه دي. لاسبري مؤرخین د یوه لاسوند پر ځای د ډېرو لاسوندونو پیدا کولواو وړاندي کولو ته پام کوي او زیار باسي چي د خپلي ادعا د سپیناوي له پاره څو مأخذونه وړاندي کړي او یا د یوه مأخذ د تصدیق له پاره نور مأخذونه وښیي.

علامه رشاد هم د همدې مېتود څخه په لودي پښتانه نومي اثر او هم په لس مقالې نومي کتاب کي کار اخیستی دئ.

په لودي پښتانه په ۱۴۹ پاڼه کي چي د جونپور درېمه جګړه رایادوي او په لمن لیک کي د هغه مبارک خان سپیناوی کوي چي په دې جګړه کي ښکېل دئ، او وایي چي دا د مأخذونو په حواله هغه مبارک خان نه دئ چي د مبارک خان لواني په نوم پخوا یاد سوی دئ، بلکي دا د مونجي خیلو لودي کورنۍ اړوند یو بل مبارک خان دئ (پاڼه ۱۴۹ لودي پښتانه).

اکاډیمېسن رشاد په هغه مقاله کي چي د کرلانیو پاچاهي تر سرلیک لاندي ئې خپره کړېده چي په پرله پسې توګه ئې یو مأخذ په بل مأخذ تائید کړی دئ، او آن دا چي طباعتي تېروتنو ته ئې هم پام کړی او هغه ئې یادي کړي دي، لکه چي په لس مقالې نومي اثر په ۳٦ پاڼه کي لیکي: د صولت شېرشاهي په ۱۱۴ مخ کي چي سید احمد مرتضی لیکلی او د علیګر پوهنتون له لوري چاپ سوی دئ هلته د تاج خان سره یو ځای بوائي لیکل سوی دئ، چي دا چاپي تېروتنه ده (پاڼه ۳٦ لس مقالې).

د تاریخ د علمي یون دوه بنسټیز فکتورونه د زمان او مکان یووالی دئ. هغه تاریخي پېښه چي زمان او مکان ئې څرګند نه وي د بشپړي تاریخي پېښي په توګه نه شمېرل کېږي.

د همدې اصل له مخي په ټولو تاریخي

اثارو کي د پښتني ځای ښودل او د وخت څرګندتیا تر ټولو لوړی په پام کي نیول کېږي.

استاد رشاد په لودي پښتانه نومي کتاب کي په پرله پسي توګه دا اصل په پام کي نیولی او د هري پښتني سره ئې د وخت سپیناوی کړی او هم ئې د سیمي او ځای پېژندل شوني کړي دي.

د نوموړي اثر هیڅ یو عنوان او سرلیک بې له څرګندي نېټې نه لیدل کېږي او ورسره د پښتني سیمه او ورشو هم جوته سوې ده، د بېلګي په توګه په ۱۰۹ پاڼه کي د بهلولپور سرلیک رایادوو: بهلولپور د خزینة الاصفی په حواله سلطان بهلول ته منسوب دئ، په ۹۳۲ هجري کال چي کله مغولي بابر د سلطان شهاب الدین غوري په لاس ودان سوی ښار سیال کوټ وران کړ نو ئې د هغې سیمي او سیدونکي بهلولپور ته ولېږل. د بابرنامې په ۱٦٦ مخ کي لیکل سوي دي چي د بهلولپور کلا د چناب د سین پر غاړه پرته ده (۱۰۹ پاڼه لودي پښتانه).

دا لنډه لیکنه په پوره روښانتیا دا برملا کوي چي اکاډیمېسن رشاد هغسي چي د هیواد د ستر ادیب او نامتو لیکوال په توګه پېژندل سوی دئ، په تاریخ لیکنه کي ئې هم ستر لاس درلود او د تاریخ د یوه عالم په څېر ئې هغه تاریخي پښتني، تاریخي کورنۍ او یو شمېر تاریخي کسان راپېژندلي چي د هیواد د تاریخ له پاره ئې پېژندګلوي اړینه وه، او له نېکه مرغه استاد په پوره ځېرتیا په تاریخي پاڼو کي د هغو تشو ډکولو زیار ایستلی چي د اوسني نسل له پاره ئې لوستل او پوهېدل اړین دي.

د پام وړ یادونه:

په دې لنډه لیکنه کي د علامه رشاد (لودي پښتانه، پښتوټولنه – ۱۳۳٦) او (لس مقالې، دولتي مطبعه –۱۳٦۷) سربېره د لاندي اخځونو څخه هم ګټه اخستل سوې ده، چي د الفبا په ترتیب دي:


۱. باوري، محمد رسول، د تاریخ او مؤرخ په اړه لنډې څرګندوني، د مقالو ټولګه: سلام ټولنه– ۲۰۰۲.
۲. ساپی، ضمیر – تاریخ چیست؟، کابل پوهنتون: کابل –۱۳۵۴.
۳. شفا، شجاع الدین. مایه، بعد از هزار و چهار صد سال، نشرات زردشتیان –۲۰۰۴.
۴. فروغ السادات، اخضري، تطابق عوامل انحطاط دول، ابن خلدون، دانشگاه تهران – ۱۳۷۷.
۵. میرحسین شاه، تاریخ نویسی در شرق، پوهنتون کابل، پروګرام ماستری تاریخ – ۱۳٦۷.
٦. هیوز، مارني، پنجاه متفکر کلیدی در زمینه تاریخ، مترجم: رضا بدیعي، انتشارات رسالت، تهران: ایران، ۱۳٦۵ش.


*****

## د خبري کولو اداب

۱. خبري باید ډېري ورو – ورو وکړل سي تر څو اورېدونکی په صحي ډول په پوه سي (کتاب الاداب).
۲. که کومه ضروري او مهمه خبره وي هغه باید درې ځلې تکرار کړه سي (کتاب الاداب).
۳. خبري باید لنډې، مختصري او له مقصد څخه ډکي وي (کتاب الاداب).

* * *

# اکاډېمېسن پوهاند رشاد:
# د تاریخ او ادبیاتو پر پوله ولاړ ځیرمن



عبدالغفور لېوال

د اویایمي لسیزي په سترو کلونو کي مي د استاد په حضور کي د زده کړي ګونډه وهلې وه، ما غوښتل د خپلو تاریخي منظومو د لیکلو له پاره، ځان په یو شمېر نازکو مسایلو وپوهوم او هغه د ادبیاتو، اساطیرو، تاریخ او مېتولوژۍ تر منځ ګډون او توپیرونه وو، استاد هم هغه مهال خپله یوه وړه دري منظومه (کوروش خون آشام) په نامه چاپ ته چمتو کوله. هغه څه چي ما له اروابښاد استاد څخه زده کړل د دغي لیکني موضوع ده، چي ځوانو لیکوالو او محصلانو ته ئې د یو امانت په توګه لېږدول غواړم.

د استاد رشاد له نظره په لرغونو دورو کي چي ورڅخه داسي مستند تاریخي اسناد نه وي پاتي، چي د پېښو او بدلونونو په اړه معلومات رامنځ ته کړي، پوهان ادبي آثارو، پخوانیو معتقداتو، اسطورو او افسانو ته مراجعه کوي، دلته

فولکلور او ولسي پانګه هم له تاریخ لیکونکو سره مرسته کوي، چي د ځینو پېښو ورک پلونه پسي ولټول سي. استاد د مذهبي او حماسي سردونو ډېري بېلګي یادولې چي د تاریخ له پوهانو سره ئې مرسته کړې ده. ارواښاد استاد په لرغونو دورو کي آن د اتنیک پېژندني له پاره هم د داسي افسانو او سرودونو مرستي ته ګوته نیوله او په دې باور وو، چي د اساطیرو ځېرو له کړو وړو، د دوی د کلام له بېلګو، جامو اغوستلو، خوړو، وسایلو، جغرافیایي موقعیتونه او نورو ځانګړنو څخه پوهېدای سو، چي دوی په کومو لرغونو قومونو پوري مربوط وو او یا لږ تر لږه له کومو قومونو سره نږدې او سېدل. مثلاً د بودا په هکله د استاد رشاد دغه دوه روایته زما له پاره په زړه پوري وو.

۱- استاد کیسه کوله چي: یوه ورځ بودا د پېښور د تاریخي کلا په لمن کي تر یوې وني لاندي ناست وو او په مراقبه کي ډوب تللی وو، چي ناڅاپه یوه ستومانه او ترهېدلې کوتره د هغه په لمن کي پټه سوه، بودا را په خود سو چي ګوري کوتره ئې په لمن کي د پټېدو هڅه کوي، بودا آسمان ته وکتل او یو باز ئې ولیده چي په کوتري پسي راکوزیږي، بودا کوتره په لمن کي پټه کړه، خو باز خښمېدلی د وني پر څانګه کېښناست، بودا متوجه سو، چي کوتره خو ئې وژغورله، مګر د باز ګېډه وږې پاته شوه، چاړه ئې راواخیسته له خپل ورانه څخه ئې د کوترې په اندازه غوښه پرې کړه او باز ته ئې ور واچوله چي وئې خوري او کوتره ئې پرېښوده چي ولاړه شي.

د بودا د فلسفي باورونو او اند دود په اړه دا روایت یو څه بیانوي، خو له تاریخي پلوه، په پېښور کي د بودا حضور، هغه هم دقیق د پېښور تاریخي کلا ته نږدې یو بل ارزښت درلودلای شي او هغه هم له تاریخي پلوه په بودایي مدنیت کي د پېښور یا پرشاپور ه تاریخي - جغرافیایي موقعیت دئ.

۲- وایې بودا د ګندهارا په لرغوني حوزه کي د خپلو تعالیمو په اړه د خپلو یارانو یوې ډلي ته د وینا اورولو وعده کړې وه پر لار روان وو، ستومانه شو، د یوې وني سارړه سیوري ته ئې ډډه ولګوله او خوب ورغي، د بودا خوب اوږد شو، هومره چي د وعدې د خلاف وېره رامنځته شوه، په دې وخت کي یو مار راغی او بودا ئې وچیچه، بودا راویښ شو. وارخطا ئې لمر ته وکتل او پوه شو. چي پرې ناوخته دئ له مار څخه ئې مننه وکړه، چي دی ئې له وعده خلافۍ څخه وژغوره، د نیلوفر یوه پاڼه ئې راوشکوله، پر زخم ئې وتړله او په بېړه د وعدې ځای ته ورروان شو. (دغه دوهم روایت وروسته نوښتګر شاعر ارواښاد اسحق ننګیال په یوه ښکلي شعر کي تمثیل کړ.)

بیاهم یو اساطیري روایت له یوې تاریخي ننبي سره، د بودا حضور په ګندهارا کي. استاد رشاد په دې اړه قطعي حکم نه کاوه، چي ګواکي حتمي به د بودا لرغوني ګندهارا او په تېره بیا پېښورته

راغلي وي که نه؟ خو له دغو روايتونو څخه ئې دغه پايلي راويستلې: افسانې او اسطورې د تاريخ څېړنو له پاره د پام وړ سرچينې دي، چي ښايي د تحقيق له اصولو سره سم په احتياط او پام سره مطالعه شي. د استاد رشاد له نظره له افسانو او اساطيرو څخه تر لاسه شوي تاريخي اسناد، چي زمان او مکان پکښي دوه مهم اصلونه دي، نه خو ډېر د استناد او باور وړ دي او نه هم ستر‌ګي ترې پټېدای شي. ځکه د څېړني پر مهال د ساينسي او علمي باور له پاره يوازي روايات او هغه هم داسي روايات چي له مذهبي او عاطفي احساساتو سره ګډ شوي وي، کافي نه دي. خو هغه مهال چي علمي اسناد ګونګ وي، تاريخپوهان دغو رواياتو ته هم مراجعه کوي. په دې برخه کي ما له استاد څخه پوښتنه وکړه، چي آيا د څېړني په اصولو کي داسي چوکاټونه او نورمونه شته چي د افسانو، رواياتو او اسطورو د مطالعې پر مهال له تاريخپوهانو سره مرسته وکړي، استاد وويل: هو، افسانې او تاريخي حماسې د لومړنيو موادو په توګه له ساحوي څېړونکو سره مرسته کوي چي د تاريخ او لرغونپوهني مادي توکي او يا د پېښو موقعيتونه بيا مومي او کله چي دغه مادي عناصرو د يوې افسانې په رښتياوالي دلالت وکړ، بيا نو د تاريخي اسنادو په برابرولو کي مرسته کولای شي.

استاد هغو څېړنو ته اشاره وکړه چي د ټرای (تراوا) د لرغوني ښار د کنډوالو د موندلو له پاره په اوسني ترکيه، د کرېټ ټاپوګان او يونان تر منځه سيمو کي تر سره شوي دي، او د دې څېړنو په بهير کي ډېر ځله د يوناني هومر ايلياډ، اوډيسي او د ټرای جګړې پوري اړوندو نورو همزولو حماسو او افسانو ته مراجعه شوې ده.

له دغه بحث څخه استاد بله نتيجه رااخيسته چي په افسانو کي مبالغه او د عقيدوي علاقې او ميني يا حب و بغض له امله ډېر ځله تاريخي واقعيتونه مسخه کېږي، د اساطيري او افسانوي شخصيتونو حضور په بېلابېلو جغرافيوي حوزو کي کله کله د پوښتني وړ وي. کله کله دا پېښي معنوي حضور ګڼل کېږي او د هغو پېروان او عقيدت مندان فکر کوي چي دا ضرور نه ده، چي هرومرو دي د هغوي اتل او يا ايډيال شخصيت جسماً يو ځای ته سفر کړی وي. په هغو اساطيري افسانو کي چي د خلکو له مذهبي باورونو څخه رامنځ ته کېږي د اتلانو کمالات داسي دي. چي په يوه سيمه کي ئې شتون له جسمي يا روحاني حضور سره ګډ او مختل کېږي. استاد ويل موږ په افغانستان کي ډېر ځايونه لرو، چي هلته د حضرت علي کرم الله وجهه ګذرګاه ښيې. په بند امير کي خلک فکر کوي چي دا بندونه د حضرت علي په ذوالفقار باندي جوړ شوي دي، ځيني ځايونه داسي شته چي غر دي په ذوالفقار پرې شوی وي، د هغه د آس دلدل د سمونو نخښي او داسي نور. اوس نو له تاريخي پلوه د حضرت علي کرم الله وجهه راتګ دغو جغرافيايي

سیمو ته د تأمل وړ مسئله ده. د افسانې او تاریخ داسې ګډون په تېره بیا په لیرې زمانو کې له څېړونکو څخه لار ورکولای شي.

استاد یو ځل ما ته د مها بهارت د یوې فارسي ژباړې (د ابوالفضل په مقدمه، د لکنهو چاپ) یوه برخه راکړه چې وئې لولم. دا اتم پرب (فصل) وو، چې د کرن او ارجن تر منځ د مشهوري جګړې کیسه پکښې راغلې وه، په جګړه کې د ځایونو نومونه راغلي وو او له مبالغې او غلو څخه د ډکو توصیفو تر څنګ داسې داستاني عناصر هم وو، چې د کیسې پر ربښتینولي ئې ټینګار کاوه، ما چې بل ځلې له استاد سره په دې اړه خبرې وکړې راته ئې وویل: هندي تاریخپوهان او میولوژستان پر دې کار کوي او ډېرې هلې ځلې ئې کړي، چې دغه ځایونه او د واقعیت په صورت کې، د پېښو زماني واټنونه تثبیت کړي خو لا هم بشپړ نه دي بریالي سوي.

په دې اړه د استاد یو علمي تیزس دا وو، چې موږ هم په خپل فولکلور، افسانو، اساطیري باورونو او ادبیاتو کې ګڼ داسې مسایل لرو، چې ښایي وڅېړل شي او تر علمي موندنو وروسته ورڅخه یو شمېر داسې اسناد تر لاسه شي، چې زموږ د تاریخي او ملي ارزښتونه په ځلولو کې ورڅخه ګټه واخیستل شي، د استاد بل نظر دا وو، چې له بده مرغه په دغه برخه کې د زده کړې مشخص کورسونه نه شته، چې وکړای شي د تاریخ-افسانو-اساطیرو او ادبیاتو تر منځ اړیکې او بریدونه په علمي او کاډمیکه توګه وڅېړي او ځوانو څېړونکو ته ئې تدریس کړي. د استاد د څرګندونو دا پایله ما ته په زړه پورې وه چې: ډېر ځله ادبیات داسې پراخه او مناسبه زمینه لري، چې دا هر څه په ځان کې راونغاړي، له تاریخي روایتو نه نیولې، د ولسونو تر حماسي ویاړونو، افسانو، اسطورو او باورونو پورې. داسې ادبي آثار چې ولسونه پکښې خپل ویاړونه، برم او باورونه وموندلای شي، تلپاتې او ټولو ته محبوب آثار ګڼل کېږي، له فرهنګي پلوه بډای او ویښ ولسونه داسې آثار رامنځته کوي، ساتي ئې او ډېر ځله وړڅخه د خپلو ملي ارزښتونو، ویاړونو او د ملي یووالي د محورونو په توګه د ملت جوړوني فرهنګي بنسټونه هم جوړوي.

***

## د خوراک او څښاک آداب

۱. د ډوډۍ خوړلو لپاره باید په داسې ډول کښېنئ چې چپه پښه وغوړوئ او پر هغه کښېنئ او ښي زنګون ودروئ او یا پر دواړو پښو ورته کښېنئ (علیکم بسنتي).

۲. د ډوډۍ خوړلو لپاره باید ګوټ او څپلۍ وکاږئ (علیکم بسنتي).

۳. غوره د اده، چې مشر تر ټولو وروسته ډوډۍ بس کړي، تر څو دا نور خلک په ښه اطمینان سره ځان موړ کړي (تکمله فتح الملهم).

***

# د پوهاند علامه رشاد هنري نثر

*****


عبدالقدیم پتیال

په پښتو کې د نوي معاصر نثر د پیدا کېدو څرکونه د مولوي نورمحمد نوري افغاني په وړو حکایتونو کې لیدلای سو او د ده لیکلي واړه حکایتونه د دې لړۍ د نثر لیکنې په لومړنیو تجربو کې شمېرل کېږي.

مولوي نورمحمد نوري د غنچه روه په وروستیو برخو کې د اوولسو په شاوخوا کې واړه – واړه حکایات په ډېره خوږه ژبه کښلي او د خپلو خلکو له محاورې سره سم او د پښتو د کندهارۍ لهجې مطابق ئې لیکلي دي. مولوي نورمحمد نوري غنچه روه په ۱۲۸۰هـ کال کې بشپړ کړی دئ (د پښتو ادبیاتو تاریخ، لرغونې او منځنۍ دورې، د سرمحقق زلمي هېوادمل، ۲۷۵ مخ).

د دغه بهیر بل سرلاری د هشنغر د تنګي مولوي احمد (۱۲۶۱ – ۱۳۰۰هـ ق) دئ. ده په نظم او نثر ځیني آثار کښلي او



ژباړلي دي. د ده نثرونه د پښتو نثر لیکنې د دغه اصلاحي جریان بشپړوونکي او د پښتو هنري نثر لیکنې له پاره د بنسټ په توګه دي.

تر مولوي احمد وروسته د نوي نثر په دوره کې میراحمدشاه رضواني (۱۸۶۳ - ۱۹۳۷ع) دئ، چې د پښتو نثر په هنري کولو کې ئې زیاته ونده اخیستې ده او ځیني حکایتي آثارئې هم کښلي دي.

د پښتو نثر د هنري کولو په برخه کې په مقدماتي توګه په ترتیب سره منشي احمدجان، میا حسیب الله کاکاخېل، میا محمدیوسف کاکاخېل، قاضي رحیم الله او استاد راحت زاخیلي برخه لرلې ده.

دغه راز د عبدالرؤف نوښاري یو څو تاریخي افسانې هم د یادونې وړ دي.

په افغانستان کې په ډله ییزه توګه د ادب له پاره کار د (شمس النهار) جریدې چې په ۱۲۹۰ هجري = ۱۸۷۴ع کې خپره سوه راپیلېږي. وروسته د مولوي عبدالرؤف کاکړ کندهاري په مشرۍ د امیر حبیب الله خان د واکمنۍ په موده کې د (سراج الاخبار افغانستان) په نوم جریده خپره سوه، چې تر لومړۍ ګڼې وروسته بیرته وتړله سوه.

دغه راز په هېواد کې د نوي ادبي او تعلیمي ارتقا پر لور ګامونه د مشروطیت د غورځنګ، چې له ۱۹۰۵ میلادي کال څخه راپیلېږي اخیستل کېږي. چې عمده او اساسي غړي ئې علمي او فرهنګي اشخاص ول، لکه: مولوي محمدسرور واصف، عبدالعزیز الکوزی، مولوي عبدالواسع کندهاری، مولوي عبدالرب، مولوي غلام محی الدین افغان، کاکا سیداحمد خان لودین، محمود طرزي، عبدالرحمن لودین، عبدالهادي داوي او ځیني نور.

تر دې وروسته د علامه محمود طرزي په مدیریت د سراج الاخبار افغانیه په نامه جریده خپره سوه چې د پښتو د لویو لیکوالو او شاعرانو مضامین او اشعار پکښې خپرېدل او دا نو د نوي هنري او ادبي نثر پر لوري د لومړنیو ګامونو په توګه زیات ارزښت لري. په دغه جریان کې د پښتو هنري نثر د ځینو سرلارو او د روښانتیا د پړاو د مخکښانو لکه: مولوي صالح محمد کندهاري، غلام محی الدین افغان، عبدالهادي داوي او ځینو نورو ونډه او فعالیت ډېر ارزښت لري او د دوی ځیني لیکني او مضامین د پښتو اساسي هنري او ادبي نثر ته د یوه الهام په حیث اهمیت لري، چې په را وروسته کې د همدغو لیکوالو له لوري راتلونکو لیکوالو (چې زموږ ادبي مؤرخین ئې د ویښتیا د پړاو لیکوال او شاعران بولي) ته دا زمینه میسره سوه، چې په تقریباً پاخه ډول سره د پښتو هنري نثر ته وده ورکړي.

د هنري نثر د ارتقاء او تبارز په لاره کې په کندهار کې د ادبي انجمن (۱۳۱۱ هـ ش تاسیس)، د لوی استاد علامه حبیبي په نوښت د طلوع افغان پښتو کېدل او همدا راز د کابل پښتو ټولنې او د دغې ټولنې له خوا د کابل مجلې، د نوي ادبي او هنري نثر په وده کې پوره - پوره ونډه

لرلې ده. دغه راز د پښتو د ځینو لیکوالو تعلیمي آثارو هم نوي پښتو هنري نثر ته لاره هواره کړې ده.

د ویښتیا د پړاو د متاخرینو په ډله کي یو هم اروانښاد علامه عبدالشکور رشاد دئ، چي د هنري نثر په پراختیا او ځلونه کي ئې بارزه ونډه اخیستې ده.

دا سهي ده. چي علامه رشاد مرحوم په علمي ژوندانه کي تر ټولو زیاته پاملرنه د څېړني خوا ته کړې وه او موږ که ئې د آثارو لړلیک ګورو نو په سلو کي پنځه نوي به د څېړني او تحقیق په ډګر کي لیکل سوي وي، خو علامه رشاد د یوه لوی مؤرخ او عالم تر څنګ یو هنرمن هم وو، یو شاعر وو او یو داستان لیکونکی هم وو. پوهاند علامه رشاد له ځوانۍ څخه شعري طبع لرله او همدغه لامل وو چي کله کله ئې شعر هم کیښ او هنري نثر ئې هم لیکی.

علامه رشاد د شعر تر څنګ د هنري نثر په برخه کي د یوه متعهد لیکوال په حیث پاته سوی دئ او تر ډېره بریده ئې د یوه ریالیستې لیکوال په توګه د وطن او ټولني ناخوالي په خورا لوړ انداز بیان کړي دي.

دا چي ځیني کسان وایي چي پوهاند رشاد د فکر له پلوه په هنري لیکنو کي غبنتلی ښکاري، خو لفظي ښایست ئې په نثري برخه کي نه تر سترګو کېږي، زما په ګومان لږ څه د تأمل وړ خبره ده، ځکه چي موږ وړاندي وویل چي پوهاند رشاد په هنري نثر کي د ریالیزم پلوی وو او همدغه علت وو چي کله کله به ئې د شاعرۍ او لیکوالۍ لفظي ښایست د فکري ځلا تر شعاع لاندي راغلی، مګر دا خبره کله کله پېښېدله او هر وخت ئې موږ د ده په آثارو کي لیدلای نه سو.

تاسي وګورئ د پوهاند رشاد لاندنۍ هنري لیکنه، چي د جګي ماڼۍ او وربښمیني جامې تر عنوان لاندي ده:

"نور څه نه وو، صرف د مستیو بېواکو قهقهو چي کله به د نڅا یو سپک مګر زړه پاڅوونکی او کله به د خوږو نغمو یوه نری په پرده کي نغښتې مګر زړه وړونکې آزانګه هم په ګډېدله. د هوا څپې ئې سره رېږدولې. هلته د دې عیش او طرب په شخول په یو مړژواندي زګېروي کي کله د (خیل لالئ) رېږدېدونکی معصومانه ږغ هم ورسره وو، د هوا څپو ته سپارل کېدی ...

دا غوښاشکي د یوه خوارځواکي واړه ماشوم وې، چي د تروږمۍ د شپو په یوه تېره ماخستن په توره دربیله کي له یخه کېښې اخیستی وو او له ترغونې ماښام څخه د یوې وچي سړې ګولې په نامراده هیله د جګي ماڼۍ په لوړ تړلې وره پوري زنګېدی.

د یتیم ماشوم آواز د استرحام له ډېرو نارو څخه درېدلی وو، ږغ ئې تر خوله نه ختی، د وروستي ځل لپاره لوړې او یخ مجبوره کړ، په داسي حال کي چي ستونی ئې له غریوه ډک-ډک کېدی او ساه ئې په سینه کي نښتله د خپل وروستي ږغ (خیل لالئ) سره لڅه ککړی. د جګي ماڼۍ پر کلک درشل ونښته.

په دې ترڅ کې یو ښوزله ښځه چې په چټکو، مګر بې سېکو ګامو او پلټونکو مګر رنځورو کتو ئې جدي تلاښ او طلب څرګنداوه، دغې خوا ته راورسېدله. په خورا تپاک ئې وروځغستل او هغه نیم بربنډ لاښ ئې په خورا مینه په زړه پوري ټینګ ونیو چې مخ ته ئې وکتل، ناڅاپه ئې یوه سوې کریږه تر خوله وختله او په داسي حال کې چې شونډان ئې له ژړا مرۍ - مرۍ کېدل، وویل:

خواره کونډکۍ مور دي تر تا وګرځي، هغسي دي ځان تر خپلي معصومي ناپوهۍ جار کړ، چې سړي په جګو ماڼیو او زړونه دي په وربښمینو جامو کي پلټل".

په پورتنۍ لیکنه کي د استاد فکري، هنري او اجتماعي اړخ او دریځ خورا ښه څرګندېږي.

د الفاظو د ترکیب او ادا په برخه کي واقعاً یو عالي هنر پکښې نغښتی او د پیغام شکل ئې لکه ترمخه مو چې وویل د یوه واقعي ریالیست په توګه په ډېر افاقي ډول ترسیم کړی دئ.

پورتنۍ لیکنه د خوارو او ښوزلو د غریب ژوندانه هغه انځور دئ، چې د واقعیت پر بنا رامنځته سوی دئ او دا واقعیت په ادب کي هغه اصل دئ چې د ننني زمانې پوهانو د ټولو علمي اصولو په پیروۍ منلی دئ.

ریالیزم یا واقعیت د ننني ادب هغه مخکښ دئ، چې د خارجي فضا د عصر ادب په ځان پسې کشوي او دا هغه مرحله ده چې وروسته تر یو لړ انقلابونو په ادب کي راغلې او د نن ورځي اجتماعي لیکوالو منلې ده.

استاد رشاد هم د یوه واقعي اجتماعي لیکوال په توګه د (هنر د ټولني له پاره) له مفکورې څخه کار اخیستی او د نظم او نثر دواړو خواوو کي ئې د ټولني عکاسي په خورا رسا او ساده، خو هنري شکل کړې ده.

دغه راز استاد پوهاند رشاد پر ادبي او هنري ټوټو سربېره ځیني داستانونه هم کښلي، چې البته د ننني نړیوالو تعبیرونو پر اساس چې د اوسنۍ لنډي کیسې په باب منځته راغلي دي، سره مطابق نه. خو په خپل وخت کي دغسي داستاني هنري لیکني د پښتو داستان په لومړنیو بولګو کي شاملېدای سي. لکه څنګه چې لوی استاد پوهاند علامه حبیبي په ۱۳۱۲ل کال په طلوع افغان کي (د سرو زرو ګیند) په نوم د پښتو داستان لومړۍ بېلګه منځته راوړه او بیا ئې په ۱۳۱۵ کي د (توریالۍ پښتنه) په نوم حماسي کیسه ولیکله او په افغانستان کي ئې پښتو داستان لیکني ته لاره هواره کړه، همدا ډول استاد پوهاند رشاد هم د هنري داستاني نثر په برخه کي وخت ناوخته دغسي تلاښونه کړي دي. په دغه برخه ي ارواښاد استاد الفت، استاد بېنوا، استاد خادم، استاد رښتین او بیا په ترتیب سره ارواښاد پژواک، ارواښاد ژواک، سراج الدین سعید، عبدالقدوس پرهېز، مولانا محمدشریف، عبدالرحیم هاتف، غلام محی الدین زرملوال، ننګ

یوسفزي، امان الله سېلاب، محمدصدیق روهي، نصرالله حافظ، ګل محمد نورزي، محمدیوسف ساپي او ځینو نورو نومونه هم یادولای سو.

استاد پوهاند رشاد (له عمره ئې واخلې پر عقل ئې ور واچوې) په نامه داستان د پښتو لنډي کیسې په ابتدایي داستانو کې یو خورا ممتاز په زړه پوري داستان دئ، چې د پښتو لنډي کیسې د تاریخچې په برخه کې کافي بحث پر کېدای سي.

ژباړه:

استاد علامه رشاد د خپل علمي ژوند په جریان کې ډېري هنري ژباړې هم کړي دي. چې د خپل لومړي دور په لیکوالو کې او بیا د دوهم دور په لیکوالو کې ځانته په دغه برخه کې بېل ځای لري. استاد رشاد ځیني کیسه ییز آثار هم په پښتو کې په خورا روان او هنري ډول ژباړلي او ځیني ادبي لیکني ئې هم له بېلابېلو ژبو څخه په ډېر هنري انداز کې ترجمه کړي دي. چې په دغه برخه کې ئې د لیو تولستوی (درې نکلونه)، بې لاسو ښځه او ځیني متفرقه هنري لیکني او ادبي ټوټې د خاصي یادوني وړ دي.

دا لاندي ترجمه ئې د تبرک په ډول رااخلو:

د میني نغمه

"آزما مینه!

غرمه چې زه په خپل واک کې یم، ستا د موندلو شوب (اشتیاق) نه وي راسره، دا ځکه چې زه په خپلو خورو ورو خوبو کې وینم، چې د نړۍ درستي هیلي په لاس راوستلای سم او په دغو خوبو دونه ډاډه یم، چې وایم (دنیا زما ده).

هو!

په دغه وخت کې زما د نغمو تارونه د هوا څپې ګډې وډې کړي، نو زما مینه!

زه تا ته اړه نه یم، زه په خپلو نغمو مسته او سرشاره اوسم، ته هم د لوی دریاب پر غاړه کښېنه او د خپل روح د هوسایۍ اسباب راټولوه، زه آرامه یم.

مګر په نیمو شپو کې:

کله چې ټول کاینات بیده وي او د سهار تودې وړمې لا نه وي خپرې.

کله چې تور غرونه یو په بل پسي خواشیني ولاړ وي او ګوري.

کله چې د لویو دریابو کومي چپ وي.

کله چې یو پرتم پر نړۍ غوړېدلی وي.

آزما مینه!

زما روح ستا د ړغ له پاره توسېږي، نغمې مي سړې سوي دي، هسي خوشي چیغې مي تر خولې خېږي.

آزما مینه!

کله چې زه تا بولم، یو طلسمي ږغ ځنګل په خوښي ډکوي.

اې ما ته راتېره!

د لوی دریاب له پوري خوا خپل روح راولېږه، چې زما له روح سره همنوا سي".

د ترجمې د اصولو په مبحث کې دې نتیجې ته څوک رسېدای سي، چې د

تخلیقي او هنري آثارو ژباړه ګرانه خبره ده او په دغه برخه کي خو کله کله ځیني منثور ادبي آثار او لوړ اشعار داسي وي، چي کله بلي ژبي ته د ترجمې په پروسه کي انتقالیږي، نو د خپلي ژبي هغه اصلي خوند او رنګ له لاسه ورکوي، خو د استاد له خوا ځیني ادبي او هنري ترجمې په ډېر صداقت او امانت سره راژباړل سوي او تر ډېره حده ئې خپل هنري ارزښت له لاسه ورکړی نه دئ.

د بحث د خاتمې او نتیجې په توګه ویلای سو، چي استاد پوهاند رشاد د تحقیق تر څنګ په تخلیقي ادب کي د یوه غښتلي، خو ظریف او هنري قلم تښتن وو او د شاعری تر څنګ ئې د منظومو هنري ترجمو او ادبي لیکنو په برخه کي ځانته یو بارز مقام تثبیت کړی دئ.

***

## د خوراک او څښاک آداب

۱. په درو ګوتو خوراک کول سنت طریقه ده، خو که نورو ګوتو ته اړتیا پیدا سي نو استعمالولای یې سئ (تکمله فتح الملهم، علیکم بسنتي).

۲. خوراک او څښاک باید د بسم الله په ویلو سره پیل سي (ترمذي – دوهم ټوک).

۳. غوره دا ده، چي بسم الله په څه لوړ آواز سره وواياست، تر څو نورو خلکو ته هم وریاده سي (فتاوی هندیه).

۴. د ډوډۍ خوړلو په مجلس کي چي څوک مشر وي هغه دي لومړی د ډوډۍ خوړل پیل کړي (علیکم بسنتي بحواله مسلم).

۵. له ضرورت او اړتیا څخه پرته د خوراک په وخت کي تکیه مه وهئ (تکمله فتح الملهم).

۶. د ډوډۍ خوړلو پیل او ختمول باید د مالګي په خوراک سره وسي او دا یو مستحب او غوره کار دئ (امداد الفتاوی).

۷. د لاس مینځلو ښه طریقه دا ده، چي لومړی یې مشران او وروسته یې کشران پرېولي (تکمله فتح الملهم).

۸. په کوم لوښي کي چي خوراک وکړه سي، بیا په هغه لوښي کي لاس مینځل مناسب کار نه دئ (آپ کي مسائل اور اُن کا حل).

۹. د لاس پرېولو په وخت کي متوجه اوسئ چي پر فرش، د چا پر جامو او یا بل شي مو د اوبو څاڅکي ونه لګېږي، بلکي په ښه اطمینان سره لاس پرېولئ (احیاء العلوم).

۱۰. له ضرورت څخه پرته د خوړلو لپاره یوازي یو لاس پرېمنځل د سنت طریقې خلاف عمل دئ، بلکي باید دواړه لاسونه پرېولئ (نفع السائل والمفتي).

*****

# د علامه عبدالشکور رشاد د شخصیت ژبپوهنیز اړخ

بایزید اڅک



اکاډیمېسن پوهاند عبدالشکور

رشاد د هیواد ستر پېژندل سوی څو بعدي علمي شخصیت وو. نوموړی یو ډېر دقیق باریک بینه او شکاف محقق وو، د افغانستان او سیمي په تاریخ کي ئې هم آثار لیکلي دي. د پښتو ژبي او ادب په باره کې ډېري دقیقي څېړني کړي دي. په ژبپوهنه کي ئې هم پراخه مطالعه لرله او د ښه ډېرو آثارو خاوند دئ. اکاډیمېسن پوهاند علامه رشاد په فارسي، عربي، انګریزي، روسي، اردو، هندي او د سیمو په زیاتو نورو ژبو پوهېده او ورڅخه استفاده ئې کولای سوه. استاد د روسي ژبي په باره دې حد ته رسېدلی وو چي د هغه له قوله کله کله روسان نه په پوهېدل چي د ده ملي ژبه روسي نه ده.

(یوه خاطره) یوه ورځ ما د (تولیدی فونولوژي) کتاب چي ما له انګریزي څخه په پښتو ژباړلي وو، استاد ته مي له انګریزي متن سره وښود وئې لوست، ډېر ئې تقدیر او تشویق کړم او زیاته ئې کړه

چې ما له روسي استادانو څخه دا پوښتنه
کړېده چې ولې په روسي ژبه کې تهران ته
تګران وايي ليکن نهرو نخرو بولي، هيڅا
هم سم جواب نه دئ راکړی. ځکه اوس نو
ته چې د توليدي فونولوژۍ کتاب دي
ژباړلي دئ، روسي دي هم يو څه زده ده، د
توليدي فونولوژۍ په رڼا کې راته ووايه
چې ولې په روسي کې تهران تګران او
نهرو نخرو بولي په داسي حال کې چې (ن
او ت) دواړه غاښيز اوزاونه دي او
ورپسې ئې د /è/ واول آواز دئ بيا
ورپسې ه ده چې په يوه کلمه کې په ګ
بدلېږي په بله کلمه کې په /ź/ رښتيا چې
زه ورته بې جوابه پاته سوم او ورته ومې
ويل چې زه به په دې باره کې مطالعه او
فکر وکړم بيا به بله ورځ درته ووايم. بلې
ورځې ته مې پسله ډېر غور او څېړني څخه
جواب پيدا کړ د استاد قناعت مې حاصل
کړ، ما ورته وويل چې خبره په غاښيزو
کانسوناټونو او ورپسې واولو کې نه ده
چې دواړه يو مخرج لري خبره په پزيز او
خوله يېز کانسوناټو کې ده چې د پزيز
کانسوناټ د ادا په وخت کې د تالو پای ته
uvula ژبۍ کښته کېږي او د پزي لار
خلاصه وي نو په دې وخت کې د ژبې بېخ
ورسره لګېږي نو /خ/ جوړېږي او خوله
يېز(ت) آواز په وخت کې ژبۍ د پزي د
لاري د تړلو لپاره پورته کېږي نو بندښت
په velum يا نرم تالو کې راځي چې ګ
جوړېږي. استاد ته دغه جواب ښه په زړه
پوري وو او وئې مانه دا وو په تشريحي
ژبپوهنه کې د استاد د ژوري پوهې مثال.

علامه رشاد صاحب په زړو آريايي
ژبو لکه سانسکريټ، اوستا او زړه فارسي
کې هم زياته مطالعه کړې وه. علامه رشاد
صاحب د مهارشي پاڼي ني د "اُښت
ادهيايي" په مشهور کتاب کې د پښتو
ژبي کلمې پيدا کړي او په ژوره توګه ئې
څېړلي دي. زه به ئې يو څو مثاله د هغه د
لغوي څېړنې له کتاب څخه راوړم.

لومړی کلمه د "هل" کلمه ده، پښتو
هل Hara > Har > Hal.

هل: پښتانه د يوي هغه تير ته هل
وايي چې يو سر ئې د سرباڼي په واسطه په
جوغ پوري بندېږي او په بل سر کې ئې
کونده، سپاره او تېش (پاله = کړه کۍ)
وي. استاد دغه کلمه لومړی په پښتو
محاورو وروسته د پښتو شاعرانو له
شعرونو او پښتو قاموسونو څخه مثالونه
راوړي او بيا ئې په نورو ژبو کې لټولې ده.
له هغه جملې څخه په معاصرو هندي ژبو
کې او بيا د دغې کلمې اشتقاقونه او
ترکيبونه را اخلي او وايي د پاڼي ني په
اښت کي ادهيايي کي موږ پر داسي کلمو
هم پېښېږو چې له Hara او Hal کلمو
څخه د ځينو وندونو (افسکونو) په
نښلولو سره جوړي سوي دي.

لومړی: د مخ ونديو prefixes په
واسطه apa hali a hali : په دغو
کلمو کې (a) او( apa = بی) نافيه
مخوند دئ. دا هغه چا ته ويل کېده چې
هل به ئې نه درلود. د هاير سانسکريټ
ګرامر په ۱۶۴ مخ کي د
( a-hali) کلمې پر ځای (a- hal) راغلي

ده. دغه راز sa hali هغه بزګر ته ویل کېده چي هل به ئې ښه وو، په دغو کلمو کي dur د بد، په معنی سانسکریتي مخوندی دئ.

dur daśa د (بدحال)، dur daća (بدچاري) dur gat بدقسمتي. د دې په مقابل کي su hala, sa hali هغه بزګر ته ویل کېده چي ښه هل به ئې درلود په دغو کلمو کي su د "ښه" معنا لري دغه مخوندي په آریایي ژبو کي د hu په ډول ویل کېده لکه په روستائي Hu śiti ښه ټاټوبي (Hutara) د ښې رمې لرونکي دلته باید زه د هغه په تائید څه زیات کړم د خوست او سوات په نومونو کي هم دغه د سانسکریت Su په مقابل کي آریایي Hu لېدل کېږي.

د مورګن سترن په لکچر نوټونو کي راغلي د سانسکریت له su vasta څخه اوسنی سوات جوړ سوی دئ د اوستا hu vasta څخه اوسني خوست. زه دا هم زیاتوم چي د هندي S په مقابل کي آریایي h نور مثالونه هم سته. هندو آریایي بیا رغول سوی کلمه hur آریایي هم hur اوستا hur او xur کلاسیکه فارسي xar هندي sar اوسنی surəĵ اوسني فارسي xurśid پښتو نمر، لمر دا ټول له یوې آریایي ریښې دي. دغه راز skt soma ar haoma دغه راز اوستا hapta= اووه = هفت سانسکریټ sapt سره معادل دي. لکه پورته چي مو د پوهاند رشاد صاحب څېړنه رانقل کړه Apa hali a hali د بې هله په معنی وو، زه د اکاډیمېسن رشاد صاحب پر څېړنه زیاتوم چي دغه مخوندي یوازي په هندي ژبو کي نه وه، دا په آریایي لرغونو ژبو کي هم وه، وګورئ د پښتو د پوره کلمه اوستا له a puor څخه راغلې ده a (بی) puora پر یعني بی پره یا پښتو پوره، آریایي او هندي ژبي په ډېره لرغونې یعني د ویدا او ګاتا په زمانه د دوو لهجو په څېر وې دا خبره بیخي ډیرو مشرقینو په خپلو آثارو کي په وار وار راوړې ده.

رشاد صاحب وایې:

دوهم د شاوندي په واسطه د کلمو جوړونه، ya په سانسکریت کي د تېري زمانې مجهول مفعول (past Passiveparticiple) وو، لکه Durś-ya لیدل سوی، vać- ya ویل سوی په اُښت ادهیایي کی هغه مځکه halya بلل سوې ده چي په یوه فصل کي په یوه هله یوې کیدلای سي، دغه اندازه مځکه اوس په کندهار کي golba بولي موږ ئې په ارزګان کي یوه یوې دوې یوې په سانسکریتي قاموس کي hal vǎhǎ او hal- in کلمې د هل وهونکي یوې کوونکي په معنا راغلي دي. Hal- vahi او hal- ǎyi کلمو ته د هل وهلو او یوې کولو (بزګری) معنی کښلې ده.

بله کلمه چي استاد څېړلې ده:

Yǎnǎ یانه کلمه ده چي وایي د بامیان کلمه کي "یان" ظرفي لاحقه ده په پښتو ژبه کي yǎna ظرف مکان شاوندی

دئ جمع ئې yăn ، yănə د مکان
شاوندي په توګه "په پښتو لیار" "پښتو
ګرامر" او " پښتو اشتقاقونه او
ترکیبونه" کې راغلي دي او دغه څلور
مثاله ورسره سته.

۱- اغزیانه - څارزار
۲- ځوزیانه - خارزار
۳- کوکیانه - ګلزار
۴- وښیانه - علف زار

۱ - په اغزیانه کې اساس معنی داره
واحد اغزی دئ چې ay دفتانګ په ترکیب
کې لوېږي. دغه لغتونه په پښتو سیند،
سپېڅلې پښتو، لس زره لغات، پښتو
قاموس، ظفراللغات او پښتو- پښتو
تشریحي قاموس کې راغلي دي. وروسته
اکاډیمېسن پوهاند صاحب دغه لغتونه په
پښتو لهجود پښتو شاعرانو په شعرونو او
هم د پښتو په خوندو ژبو لکه پامیري ژبي
او اورمړي کې پیدا کړیدي او هم په
سانسکریت ژبه کې موندلي دي asvaka
skt, yănə یعني د سوارکارانو ملک
aska (آس) aspa ,av (آس) ak- په
سانسکریټ کې د فاعلیت معنی لري.

په پښتو کې دغه شاوندي د ək په
بڼه راځي. ځیني محققان asvaka yănə
د پښتنو (افغانانو) ملک بولي. استاد
زیاتوي چې د پښتو ژبې yănə ظرفي
لاحقه په ختیځ کې اوږده سابقه لري او څو
زره کاله پخوا ئې په هندغه yănə په
افغانستان ، هندوستان او منځني اسیا
کې رواج درلود لکه:

۱- اریانه Ari yănə (هرو دوش او
سرابون رواړې ده).

۲- باکتریانه bacter yănə یوناني
مؤرخینو د افغانستان ډېر زوړ ښار ام
البلاد او شاوخوا.

۳- مرګیانه - مرغاب.

۴- درنګیانه - زرنج.

۵- پکتیانه - بطلیموس د پکتیا د
قبیلې د اوسېدو ملک پکتیانه راوړی
دئ.

٦- اُودیانه - د ګندهارا شمال ته پرته
ده اوسنی سوات، دیر او باجوړ پکښې
شامل دي.

۷- سغدیانه - په پخواني ماوراء
النهر کې له سمرقند څخه تر آمل پورې.

۸- لودهیانه - په ختیځ پنجاب کې د
جلندرا او سرهند تر منځ.

۹- هریانه - د دهلي لوېدیځ ته.

۱۰- کورمایانه - په شمالي
هندوستان کې د هردولد شمال ته.

استاد لیکلي دي: جاپاني لیکوال
تاني په خپل کتاب افغانستان په ۱۳ مخ
کې د بامیان په نامه کې بام مکاني لاحقه
ده. بام په فارسي کې د سهار معنا لري لکه
د فارسي ژبې په بامداد او مامدادان کلمو
کې چې مجازاً د نور او رڼا په معنی هم
دي.

بامیانو ته بودیان د زیارت لپاره
داسې راتلل لکه مسلمانان چې حج ته
ځي، د بودایانو د عقیدې له مخې په
بامیان کې نور اوربېده، استاد وایې که څه
هم ځینو د بامیان څخه د ښکلي ځای معنی
اخیستې، خو ما ته دغه د نوراني ځای

معنی سمه برېښي.استاد ته وروسته
څېړنو دا څرګنده کړه چې د حضرت عیسی
(ع) تر زوکړې څو پیړۍ د هغه د مخه دغه
مکاني لاحقه د دې سیمې په نومونو کې وه
لکه:

Mănĵa yănə مونجایانه - اوسنی
منجان.

Kapisi yănə کاپیسی یانه -
اوسنی کاپیسا.

Hasta yănə- اوسنی اشنغر.

Waṉa yănə- اوسنی وانه.

Dvyaks yănə- اوسنی بدخشان.

د لغوي څېړنې د ۹۲ مخ په پای کې
"ژاړی" کلمه راغلې ده. استاد لیکلي
دي:

۱- هغه فصل چې لو ته نژدې وي.

۲- یو کلن سخوندرکی (خوسکی
چې په عربي ئې تبیع بولي، تبیعه په پښتو
کې زاړې ده زاړې هغه غوا ته هم ویل
کېږي چې شیدې ئې پر وچېدو وي. په
نورو پیورو څاروو کې هم دغه کلمه
استعمالېږي. د خیرالبیان په (۱۰۴) الف
مخ کې راغلي دي. زکات د غویښ دی
بیان، که څاروي دېرش شي هاله ګوښی
ژاړي دي که کال ئې تېر شي تمام.

زه غواړم چې د دې لغت پر معنی څه
ورزیات کړم په ارزګان کې هغه کښت چې
د کرلو د وخت یا موسم په سر کې کرل
سوی وي مثلاً د میزان په پیل کې وایي
چې دا کښت زاړی دئ، د ژمي تر رارسېدو
د مخه ئې اوبه ورکول په کار دي چې ښه
وده وکړي بوټي ئې غټ سي د دې په
مقابل کې هغه کښت چې د ټاکلي موسم په
پای کې سوی وي تندی کښت ئې بولي
خلک وایي چې زما یا ستا کښت تندی وو
بوټي ئې غټ نه سول اوس په مني کې اوبه
هم نه غواړي.

د زاړی بله معنی په ارزګان کې وایي
موږ اوس د شیدو کولو دوې غواوې لرو،
یوه هغه د پروښ کال زاړې لوغزه غوا ده
بله سږ کال په دغه میاشت کې تندۍ لنګه
سوېده. نو دا چې بایزید روښان ویلي دي:
څاروي هاله ګوښی زاړی دئ چې کال ئې
تېر شي تمام د ارزګان د زاړي لوغزه سره
سمون خوري لیکن د زاړې کښت (تندی)
کښت جواب نه وایي.

د خیر البیان بله کلمه چې زه پر هغه
باندي یو څه زیاتول غواړم د سترغلي
کلمه ده. رشاد صاحب دا معناوي راوړي
دي: د سترګو کاني، د سترګو تخم، د
سترګو مرغټانه.

په خیرالبیان کې راغلي دي: ګوره
اوبه د شوندو، بانه و سترغلی و ته رسول
... دا په اودس کې واجب دي. وروسته
رشاد صاحب کښلی دي چې سترغلی په
ځینو فرهنګونو کې د سترګۍ په کاسه او
په کسي او نینک هم ترجمه سویدي.
ظفراللغات ۵۷۷ مخ، WB ډکشنري ۹۲
مخ په لس زره لغتونو کې د سترګو په پردو
معنی سویدي.

په ارزګان کې ئې موږ هم د سترګو
کاسه په معنی استعمالوو دا خو ښکاره
خبره ده غلی یا غالی په پښتو کې ظرفي
وروستاړي یا شاوندی دئ لکه کوډ

غالی، بزغلی او رغالی، پنډګالی څه حاجت سته چې د ګاڼې او مرغټان و پردې په معنی ئې واخلو.

سترګه = غلی یا غالی.

له سترګی څخه وروستی کانسونانټ د غالی د لومی کانسونانټ سره مغلق هجائي جوړښت ګرځي نو د دغو دوو کانسونانټونو یو ئې (ګ) حذفیږي(ساده هجائي جوړښت منځ ته راځي) نو سترغلی جوړیږي یعني د سترګو ځایونه.

علامه رشاد صاحب د مخونډي او شاونډي کلمې استعمال کړیدي یو چا وویل چې دا خو د فارسي له پیش وند او پسوند سره یو شان دي یوازي ئې (مخ) او شا برخه پښتو ده. ما ورته وویل چې وند پښتو Saffix دئ په مقابل کي ئې فارسي بند راځي د کلمو د سر "b" "په پښتو کي په منظم ډول په "W" راځي او په فارسي کي په هماغه "b" دئ. مورډ ولې بند یا سربند ته وند وایو، دا د کلمې د سر "b" په "W" راتلل په وندني = کي هم عام دئ. له بده مرغه پر پښتو ژبه له پخوا څخه تر اوسه یو ادبي ظلم سوی دئ او هم پر کېږي. هغه دا دئ چي په پښتو د کوم لغت ډول یا وینګ لړ څه د عربي یا فارسي یا بلي ژبي له لغت سره ورته وي نو سم دلاسه ئې بې له کوم تحقیقه دا حکم کېږي چي دا د پلانی ژبي دئ.

**پښتو جاپانی قاموس:**

استاد لیکلي دی په جاپاني ژبه د جاپان نوم (Nihon) دئ. جاپانیان ځانونه (Nihonjin) بولي او خپل ملک د درناوي په توګه د (Dai nihon) په نامه یادوي چي د لوي جاپان معنی لري. دا کلمه کله کله د Nippon په ډول هم لیکله کېږي، چي په جاپاني ژبه د لمر د مطلع یا منشاء معنا لري لکه زموږ خراسان چي د فارس او کرمان او عراق وګړو د خپلو ملکونو ختیزي سیمي د خراسان (مطلع الشمس) په نامه یادولې.

Nihon یا جاپان هغه نوم دئ چي لوېدیزو ګاونډیو پر دغه ملک ایښی دئ. د پښتو جاپاني قاموس لیکوال Nawăta Tecno نومېږي، دی له ۱۹۶۶-۱۹۶۷کال د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو پوهنځي کي د پښتو څانګي له استادانو څخه د پښتو په زده کړه بوخت وو، ده تر دې پښتو جاپاني قاموس وروسته د پښتو ژبي مدخل تر عنوان لاندي یو بل کتاب هم لیکلی دئ چي استاد رشاد صاحب هغه نه دئ لیدلی. د پښتو جاپاني قاموس یونیم زره لغتونه لري. چي په ۱۹۸۲ کي چاپ سوی دئ. ۱۸۳ مخه ئې متن او ۱۲ مخه ئې مقدمه ده، فهرست ئې په ۱۸۴ مخ کي دئ قطع ئې ۱۷× ۵۰/ ۱۰ سانتی دئ. د پښتو پر دوو لهجو رڼغېږي، کندهاری لهجه د (پستې) او پېښوری لهجه د(زیږې) لهجې په نامه یادوي. وروسته د پښتو ږغ پوهني phonology او په پښتو الفبې کي باب ۴۰ توري په یوه داسي جدول کي ښیي چي شپږ لغتونه لري. لومړی د توري نوم په لاتیني لیکدود او په

شپږم ستون کي د هغه توري لاتيني نخښه (Phonemic) ګرافيم راوړي.

دغه قاموس استاد ښه په غور نقد کړی دئ او ۲۰ موارده سموني ئې پکښې کړيدي او بيا ئې ښېګڼې په ګوته کړي مثلاً وايي د پښتو جاپاني قاموس يوه ښېګڼه چي نه بدلېدونکی صفت د مؤنث د ليکلو ځای ئې سپين پرې اېښی دئ او په دې توګه ئې له دغه قاموس څخه ګټې اخيستونکي ځير کړيدي چي دغه صفتونه د جنس په لحاظ بدلون نه مني. نواتاتيځو کله کله د صفتونو جمع او مؤنث شکل دواړه ښيي. د جنس ټاکنه ئې خورا دقيقه سوېده خو بيا هم ندرتاً پر ځينو تېروتنو ستر ګي لګيږي.

### اکاډيميسن ګولدن شتت الماني (۱۷۴۵- ۱۷۸۱ ع) او د هغه پښتو فرهنګ:

پروفيسرګولدن شتت ۱۹۶ لمريز کاله پخوا مړ دئ، خو نوم ئې لا د پښتو په کړيو کي اخستل کېږي. دا ځکه چي ده دوه سوه څو کاله پخوا د پښتو ژبې يو فرهنګوټی ليکلی دئ. په دې کتاب کي د پښتو لغتونو بحث له نور کتاب څخه په دې عنوان جلا کېږي:

Awhanische, dugdrische und osseticsche sprache

نوموړي په خپل دغه کتاب کي له ګوتيک Gotic الفبې څخه کار اخستی دئ. دغه الفبی ډېره موده پخوا په اروپا کي باب وه اوس له رواجه لوېدلې ده او د ځينو مشابهو تورو بېلول ئې ګران سوی دي.

اکاډيميسن پوهاند رشاد صاحب وايي چي دغه فرهنګوټي که څه هم د حجم له مخي کوچنی دئ مګر د خپلي زمانې له شرايطو سره سم ډېر علمي ارزښت لري. زه د نوموړي مولف دا ابتکار ستايم خو له دې ستايني او قدر پېژندني سره ځان د يوه ناقد په توګه دې ته اړ بولم چي د کتابګوټي ځيني تېروتني راوباسم او ګران لوستونکي له اشتباه څخه وساتم او د کتابګوټي مهمي تېروتني مي پر دغو څلورو ډلو ووېشلې:

۱- هغه پښتولغتونه چي ترانس لېټريشن ئې سهي نه دئ.

۲- هغه پښتو لغتونه چي د جرمني ژبي له معادل لغت سره د معنی له مخی برابر نه دي.

۳- هغه پښتو خاص لغتونه چي په دغه خاص مورد کي ئې استعمال سم نه دئ.

۴- هغه لغتونه چي د جرمني ژبي له معادل لغته سره د معنا له مخي برابر دي خو اصلاً پښتو نه دي.

* * * * *

### زرين قول

* ځوک چي کونړ وي نو هغه بايد له سلام اچولو څخه وروسته د جواب ورکوونکي د شونډو حرکت په نظر کي ولري (الفتاوی السراجيه).

# زما د نميګړي ليکني لومړني هڅوونکی

لوی کندهار د افغانستان په معاصر تاريخ کي تل د غورځنګونو د سيمي په توګه پاته سوی دئ، دلته خورا مهم ملي غورځنګونه پيل سوي، پالل سوي او له دغه ځايه ئې لمن نورو سيمو ته پراخه سوې ده. د دې ځای وياړلو بچيانو لوی لوی پاچهی او مشهوري شاهنشاهی جوړي کړي دي، چي زموږ د زرين تاريخ پاڼي د هغوی په کارنامو ډکي دي. کله چي د دغه ځای د نارينه وو ستاينه او يادونه کوو، پر ځای ده چي د دغې تاريخي سيمي نامتو مېرمني هم له ياده ونه باسو، کله چي زرغونې انا احمدشاه بابا د ښار پر چاپېر باندي د کلا د جوړولو څخه منع کوي او هغه ته دا وريادوي، چي ځان او ښار به وساتې، نور اولس او ملت چي د کلا څخه بهر پاته کېږي، د هغوي ساتنه بيا څرنګه کېږي؟ په همدغي له محتوا نه ډکي خبري سره احمدشاه بابا له خپل هوډ څخه تېرېږي، په همدغه ترتيب مېرمن عينو، نازو انا او ملاله هم په همدغه تاريخي او د غور ځنګونو په ډک



سرمحقق نعمت الله اندړ

ټاټوبي کي روزل سوي دي. خبره به رالنډه
کړو د دغه ځای نوميالي ليکوالان،
شاعران، ديني عالمان او د سياسي ملي
هځو د پيل خورا مشهور سرلاري چي په
مشروطيت کي ئې ونډه د پاملرني وړ ده،
هم له دغه تاريخي کندهار څخه
راپاڅېدلي او تر نن پوري لا هم دغه لړۍ
دوام لري.

د دغه ځای د نوميالیو په لړ کي يو هم
علامه پوهاند عبدالشکور رشاد دئ، چي
له نېکه مرغه زه ئې د مستقيمي شاګردۍ
وياړ لرم، زه د دغه نوميالي شخصيت سره
د څلوېښتمو کلونو په بهېر کي هغه مهال
معرفي سوم، چي د ابن سينا د ښوونځي د
اتم ټولګي زده کونکي وم او د خدای
بخښلي عبدالستار ميوندوال په ملتيا د
ګران استاد کور ته، چي د سېلو په څلورم
سړک کي په يو کرايي کور کي اوسېدی،
ورغللو او د لومړی ځل لپاره ما علامه
استاد پوهاند رشاد له نژدې څخه وليدی،
هماغه مهال د پاخه عمر خاوند، خورا
ښکلې څېره، سور او سپين مخ او د سر په
ورېښتانو کي ئې د سپينو ورېښتو په پرتله
تور ورېښتان زيات ول.

زموږ څخه ئې داسي تود هرکلی
وکړ، لکه د چا زوی، ورور، يا کوم بل
نژدې څوک چي له ډيري ليري مسافرۍ نه
و خپل کور او کورنۍ ته راستون سي.
استاد د چای څښلو پر مهال هڅه کوله،
چي په خپله موږ ته چای په پياله کي
واچوي، په دې کار سره ئې موږ دې ته ځير
کړو، چي:

۱- هغوی چي لوی او لوړ شخصيت
لري څومره متواضع دي.

۲- هغوی چي سپک دي په بدرګه او
باډيګارډانو نه درنېږي.

شپږ او ورځي تېرېدلې د دوولسم
ټولګی څخه تر فراغت وروسته د ژبو او
ادبياتو په پوهنځي کي شامل او په پښتو
څانګه کي د علامه پوهاند عبدالشکور
رشاد د شاګردۍ وياړ را په برخه سو. د
هغه مضمون، چي د پښتو متونو د
مضمون تدريس وو، استاد په داسي يوه
ښکلې بڼه او شېوه موږ ته تدريس کاوه،
چي تر اوسه مو لا هغه خوند له ياده نه ځي.
هر محصل ته به ئې د څه ويلو او تکرار
کولو موقع ورکوله، تر څو لوست د ټولو
محصلينو په ذهن کي په ښه توګه ځای سي
او زده کړه به په زړه پوري توګه تر سره
کېدله.

د پوهنځي څخه د لسانس دورې
لپاره د مونوګراف ليکل يو ضروري دنده
بلل کېدله، د زابل د شينکۍ ولسوالۍ په
اړه مي، چي د هوتکو اصلي ټاټوبي دئ يو
ګډوډ مونوګراف بشپړ کړ، او استاد په
هغه داسي نظر څرګند کړ:

"د دغه تاريخي سيمي په اړه نعمت
جان داسي څه ليکلي دي، چي ما ئې
غوښتنه درلوده د لسانس دورې د
مونوګراف په توګه ئې بشپړ او کافي
ګڼم".

په دې وروستيو کي چي ما د خپل
مونوګراف يوه نسخه په خپلو کتابونو کي
وموندله او هغه مي څه ولوستله او د

اروابښاد استاد نظر مي هم تر سترګو تېر
کړ، خدای شاهد دئ، چي زه په خپله دغه
لیکنه وشرمېدلم او ما ته هماغه مهال د
خپلو تېروتنو او املايي غلطیو پته نه
لګېده، خو مهربانه استاد هغه تر نظر تېر
کړ او ځای ځای ئې د پنسل کرښه هم د
ځینو کلمو لاندي تېره کړې او کښلې وه،
خو د نظر په برخه کي ئې زما ستاینه کړې
وه او زه ئې په همدغه توګه وهڅولم، چي د
نورو لیکنو هڅه وکړم او هماغه وو، چي د
دخانیاتو او چلم د زیانونو په اړه مي
لومړنۍ مقاله وکښله، چي چاپ هم سوه،
په همدغه ترتیب مي د لیکني او لیکوالۍ
په ډګر کي ورو ورو ګامونه اوچت کړل،
چي زما د لیکني او لیکوالۍ د برخي
اصلي هڅوونکي اروابښاد علامه پوهاند
عبدالشکور رشاد دئ او زه به ئې د ژوند
ترپایه د دغه احسان ترپور لاندي یم.

د یادوني وړ ده، چي استاد د خپلو
لیکنو او د نورو د لیکنو د کره کولو په
برخه کي د ډېر احتیاط څخه کار اخیست،
دا چي د لومړنیو او مبتدي لیکوالو لیکني
ئې ډېري نه کره کولې، د استاد موخه د
هغوی هڅونه وه.

زه کوم وخت چي د یوې مجلې مسئول
چلوونکی وم، د یوه ډاکټر مقاله مي په
مجله کي چاپ او خپره کړه، چي د تحریر له
خوا هم منل سوې وه، کله چي استاد د
نوموړي ډاکټر مقاله لوستلې وه، په خپله
شعبه کي ئې ما ته مجله راوښوده او د
ډاکټرۍ د علمي سند د لرونکي پوه مقاله
ئې داسي اصلاح او کره کړې وه، البته په
سره قلم باندي، چي چاپي متن ئې بیخي نه
ښکارېده او ګران استاد زه مخاطب کړم او
سپارښتنه ئې وکړه، چي د مسئول مدیر په
توګه په راتلونکي کي داسي مقاله مه
خپروه او دا مقاله بېرته ډاکټر صاحب ته
ورکړه، چي هغه ئې هم وګوري، که کوم
نظر لري بېرته ئې ما ته راوړه، کله چي
نوموړي ډاکټر د استاد سموني ولیدې،
حیران پاته سو، ځواب خو ئې نه درلوده.
له ما څخه ئې هیله وکړه، چي که امکان
لري دغه مجله مه وېشه او یا کېدای سي
زما مقاله ئې له منځ څخه راوکاږه، دا
یادونه مي ځکه وکړه، چي استاد په رښتیا
مهربانه مربي، لارښود او بې پلوه کره
کتونکی وو، هغه مبتدي لیکوال، شاعران
هڅول او د پخو لیکوالو لیکني ئې په
دقیقه توګه کره کولې.

دلته به بې ځایه نه وي، چي د
اروابښاد استاد علامه پوهاند رشاد یوه
خاطره هم یاده کړم، کله چي موږ په انتقالي
دوره او د علومو اکاډمي مشران او
استادان جمهور رئیس سره لیدنه او کتنه
درلوده او د علومو اکاډمي مشران او
استادان جمهور رئیس ته وروپېژندل کېدل،
اروابښاد علامه پوهاند عبدالشکور رشاد
هماغه مهال ژوندی وو، هر رئیس او
استاد چي وروپېژندل کیدی، استاد به ئې
نوم اخیست او یادونه به ئې کوله چي زما
شاګرد دئ، کله چي زما د پېژندني وار
راورسېدلو استاد داسي وویل: "نعمت
جان د پښتو څېړنو د بین المللي مرکز
رئیس دئ او زما شاګرد دئ" دکوم لور

څخه چا د طنز او کنايي په توګه را ږغ کړه، چي د استاد وفاداره شاګرد دئ، استاد سمدستي بېرته ځواب ورکړ "يه ډېر ښه شاګرد دئ"، چي پر دې خبره جمهور رئيس هم وخندل.

د اروانباد علامه پوهاند عبدالشکور رشاد د علميت، شخصيت او پېرزوينې په اړه چي هر څومره خبري وکړو بيا هم لږي دي. دلته د حسن اختتام په توګه د استاد يو شعر تاسو ته لولم، چي د هغه د کلام، کلماتو او تشبيهاتو د کاروني ځواک تاسو ته څرګند سي. علامه پوهاند عبدالشکور رشاد په خپلو شعرونو کي د هيواد تاريخي پېښي او حماسې انځور کړي دي. د اباسين پر غاړه په يوه جګړه کي د پير روښان پنځه زامن وژل سوي، کله چي بي بي شمسو د جګړې ډګر ته ورځي او خپل پنځه واړه وژل سوي زامن ګوري، دغه صحنه استاد داسي تصوير کړې ده:

## د روښانيانو کربلا

د روښـــانه پيـــر د زړه پنځـــه اچـــې
کـړې مرګـي پـه يـوه ورځ ريچـې ريچـې

پـه ښايـست سره هـر يـو د ګلـو بـاغ
د ارم د ښـــاپيرو د زړونـــو داغ

هی افسوس، ارمان ارمان ميدان دجنګ
د پنځـو ورونـو پـه سرو وينـو سو رنـګ

ځيګرونـه تـر اوږو غلېبېـل پـه غـشو
سـانګی ښـځي تـر سـامې پـوري پـه تـشو

د خپـل قـام تـوري لوېـدلي ترپـښتيو
د هـر تـپ وينـي را ايـشه پـه لـښتيو

پـه وسـلو د خپـل پـښتون تـک وسـتري،
پـه چـړو د خپـل تـوکم پکـړې ککـري،

تـوري څنـې ئـې پـه سـرو وينـو ځپلاکـي
پـه ليـدئې د دښـنو اوښـکي بـې واکـې

پنځه سره وړاندي سوه بورې "شمسو" ته
ګورئ! دې ننګ و غيرت، پت و پښتوته

نـه پـه څيـري کـړ ګرېـوان ويـر د زامنـو
نـه پـه وشـکول وېښتان، غـم د نيـازمنو

نـه ئـې شـنه کړلـه غمبـوري پـه نوکـارو
نـه ئـې يـوړې د مـخ غوښـې پـه شـوکارو

نـه ئـې سـاندي، نـه ښېراوي، نـه دادونـه
نــه آهونــه، نــه ژړا، نــه فريادونــه

نـه ئـې راغلـه يـوه اوښـکه تـر دوو سترګو
کـه هـر څـو ئـې غـم لېمـه ټومبـل پـه ژړګو

پـه ډېـر ويـاړ سره ئـې وويـل دښـنو تـه:
"سپک به نه ګورئ پر ننګ غوځو سرو ته

پـه دې څـه، کـه ستاسـي سـوه سـوبه روزي
سپکي نه دي دا پـرې غـاړي، مـات مغـزي

سپک نه دي د رښتینو قربانۍ
دا مظلومي نیمه خوا برندي ځوانۍ

سپک به نه بولې له ژونده تېر پېدل
د خپل ځان په تودو وینو کې لمبل

دغه مړینه د پړک او ښارګو
په زامنو مې د ښه خدای وه پېرزو

شکر دا چې نه دي مړه په بې لارۍ کې
په قمار، په غلا، غدۍ په کاسیرۍ کې

زه راضي یمه په کړه د هغه خدای
چې جاروتی له هر څه په هر ځای

دا مرګ مور ته راپېښه له قضا ده
په قضا د واکمن خدای زمور رضا ده"

بیائي لاس وغځاوه د سر ولور ته
د هر سر څڼې ئې کړې له مخه پورته

پاک ئې کړه په خپل پلو د هر مخ وینه
پرتندي باندي هر سر مچ که په مینه

مړه ساه چې ئې راوکښه له کوګله
په لوړ ږغ په بند بندي (شمسو) ویله:

"اې وژلو! اې ورژلو! روښانیانو!
دخپل خدای د شناخت په لار کې قربانیانو

اې بېزاره د مخلوق له بندګیو
اې د خپلو په وسلو پرې ککړیو

اې په جبر جلا سوو له تنو!
ستاسي روح خلاص شو د تن له زندانو

اې سرو! تر تاسو وګرځم مړه نه یاست
چې د حق او دیقین پر سیله مړه یاست

شابس شابس اې زما د زړه ټوټو!
چې د خدای پر وحدت تېر سو استر سرو

په مړانه مو ځانونه کړل قربان
ومو نه مانه نفاق د شرک ګومان

د منصور د زوی مقام مو خدای روزي کړ
فاني نوم مو خدای پخپل ایثار باقي کړ

پښتني میندي که ناز په هغو زویو
چې پرېوله نه په لاس د مردوه شویو"

پوهاند رشاد

***

## د سلام کولو اداب

۱. سلام اچول سنت او ځواب یې واجب دئ یعني په نه ځواب ورکولو سره ګنهکارېږي (آلاداب المفرد).

۲. سلام باید په دومره آواز سره وکړل سي. چې مخاطب (اورېدونکی) یې واوري (آلاداب المفرد).

۳. په سلام کي باید د جمع صیغه او لفظ (السلام علیکم) استعمال کړل سي (الفتاوی السراجیه).

۴. تر خبري کولو مخکي باید سلام واچوئ (ترمذي-دوهم ټوک).

# د علامه رشاد

## د شاعرۍ علمي او هنري ځانګړنو ته لنډه کتنه



عبدالنافع ثنا

د پیل خبري:

د علامه رشاد شخصیت او آثار، چي د یو بل بشپړونکي دي، دواړه پر خپل ځای د څېړني او په عملي ډګر کي د کاروني هغه خورا اړين توکي دي چي پښتو ژبه او په ټولیز ډول افغانستان ئې باید په برخه کي د غفلت نه جبرانېدونکي تېروتني ته هیڅ کله اجازه ورنه کړي. د هغه د تحلیل ځواک، د معلوماتو د مدیریت بې ساري ذهني استعداد، پیاوړې حافظه، نه ستړې کېدونکې حوصله او د باریک بینۍ ځواکمنه وړتیا هغه څه دي چي سړی دې ته مجبوروي څو هغه ته د نابغه په حیثیت قایل سي. د دې خبري ثبوت هغه مهم، نهایت مغتنم او د بهترین کیفیت آثار دي چي هغه د خپل ژوند په اوږدو کي د تاریخ، ژبپوهني او ادب په عمومي ساحاتو کي هم د تحقیق او هم د تخلیق له درکه هست کړي دي. دا لنډکۍ مقاله هڅه کوي څو د هغه د ډېرو کارنامو له لړ څخه د هغه شاعري په لنډ

ډول تر بحث لاندي ونيسي. دا چي د علامه بابا ځيړني د خپل ارزښت او لوړ کيفيت له امله د هر چا پر ذهن د بحث د تومني او غور د توکو په صفت خوري دي، په ځينو مواردو کي د همدې خبري له امله خلک د هغه پر تخليقي کارنامو او د هغو په لړ کي د ده پر شاعرۍ باندي په هغه کچه نه دي رغېدلي په کومه اندازه چي ايجاب کوي. بنائي په هغه اندازه توجه چي اړتيا ئې ده، تر ډېره وخته پوري د اشخاصو او حلقو له خوا د تر سره کېدو جوګه و نه اوسي ځکه دا کار ډېر زيار، پوهې، ذکاوت او وخت ته اړتيا لري خو د وس په اندازه هڅه کول بايد د مکلفيت په توګه ومنو او عملي کړو. د علامه بابا شاعري، د هغه د نورو کارنامو په کتار کي، د لږ ارزښت لرونکی کار نه دئ بلکه په عين تخليق کي د يوه خورا ارزښتمن تحقيق حيثيت لري. دا چي څنګه؟ په راتلونکو ليکو کي به ورته اشاره وسی. خو دا بايد په ياد ولرو چي د علامه بابا شاعري د هنريت له پلوه هم ډېره ارزښتمنه او وياړلې ده. په لاندي توګه د هغه د شاعرۍ پر ځينو ځانګړنو لنډ بحث کوو.

## هنري ځانګړني:

د علامه بابا شاعري هم هنريت پالي او هم ژمنتيا او دا دوه کاره په خورا هنر سره همږغي کوي. د ژمنتيا له برکته د هغه شعرونه مختلف مسيرونه فتح کوي او له واقعي ژوند سره خورا ژوره اړيکه ټينګوي. په عين وخت کي د هغه د شعرونو هنرپرور خوی اشعارو ته د ښلابښلو صنعتونو او ظرافتونو په مټ خوند بخښي. د علامه رشاد د شعرونو غوره ځانګړنه دا ده چي طبعي مزل کوي. د دې ښه ثبوت تر دې بل څه کېدای سي چي ثقيل او تاريخ[illegible] حکايتونه او سياسي مفاهيم ئې په [illegible] انداز منظوم کړي دي چي د سکت[illegible] ثقلت احساس به نادر پکښې رامنځ[illegible] سي. د موضوعاتو د ښلابښلوالي [illegible] اړخه د هغه شاعري يوه غني پانګه د [illegible] پکښې ټولنيز مسايل ښکلا، تاريخي حکايات، واق[illegible] حکايات، خمريه خبري او سياسي مفا[illegible] د يادولو وړ دي. د هغه شعرونه [illegible] لوستني پر مهال پر سړي نه غمېږ[illegible] لوستونکی له ځان سره بشپړ مصرو[illegible]ي. هغه دا چي د تصوير جوړولو يو پ[illegible]اوړی ځواک لري او د دې په مټ ليدل، اورېدل، لمسول، څکل او بويول ټول حواس په کار لوېدلي وي. د دې په پايله کي په لوستونکي کي د عواطفو او جذباتو د پارېدني يو په زړه پوري منظر رامنځته کېږي. د بېلګي په توګه لاندېني بيتونه چي د (نازک بوره مور) نظم څخه را اخيستل سوي دي:

ځوانان ولاړل د نازک دوی هديرې ته
داتـــل شـــهيد د قبـــر سرښـــتې تـــه
په درست کلي کي د غم تغر هوار سو
چـــا خبـــر د شـــهادت ورور ادې تـــه
بـــورکی ادې لـــه کلـــي راهـــي ســـوه
لګـي پښې ئې را ځغستله سرپوزې ته
نــه پـــه ژړګـــواره وه نـــه پـــه اغزيـــو
نـــه ئـــې پـــام ؤ ولـــښتي نـــه ويـــالي تـــه

پلوونــــه ئــــې ايلــــه پــــسې څکېدلــــه
نــــه ئــــې فکــــر ؤ پــــوړني نــــه پــــردې تــــه

په دې ځای کې موږ وينو چې د صحنې ډېرو جزئي حرکاتو ته مو متوجه کوي او دا يو پياوړی استعداد دئ. د الفاظو پرېماني يو بل اړخ دئ چې د علامه رشاد شاعرۍ ته ځواکمني بخښي. هغه د الفاظو د بازيگر ښه نمونه وړاندې کوي. دا بيت لولو:

ښه راغلې لکه گل وايم په موسکا کې پرېشانۍ ته
سترگې وچې سولې پاته د نامراد زړه حيرانۍ ته
(رڼې اوښکې، د پردېس زړه آواز)

دلته د گل موسکا او په عين حال کې پرېشاني او بيا د زړه حيرانۍ ته د سترگو وچ پاتېدل چې دا هم د هيښتوب يوه علامه ده، د باريکبينۍ يو ښه ثبوت او د الفاظو په بازيگرۍ کې د اتلولۍ وړتيا ښيي. د علامه رشاد په شاعرۍ کې د لوړ خيال يوه غوره بېلگه د هغه د افغان بزگر ته سلام نظم څخه په لاندني استخراج کې گورو:

ســـتا د موټـــه پـــه قـــوت
برخـــې وېـــشي طبيعـــت
لـه خـاورو جـوړ ســي جنـت
(او)
ســـتا ديامـــه لـــه څـــوکي
چـــوي ځيگـــر د مځکـــې
ســختي د کــښت دي ســپکي

دلته د بزگر موټ ته دونه قوت ورکول چې طبيعت دې له هغه څخه د برخو په وېشلو کې کار اخلي او د بزگر د يوم د څوکې دونه تېره والی چې هغه دې د مځکې ځيگر څيري. د تحسين وړ خيالي لوړوالی ښيي. د علامه رشاد شاعري د هغه د الفاظو د کاروني، منقلباتو او موضوع د انتخاب له امله د يوه ځانگړې شعري طرز لرونکې گڼلای سو چې د متروکو الفاظو کارونه او د تاريخي حوادثو منظومول ئې له تشخيصوونکو مواردو څخه دي. په اشعارو کې د علامه رشاد د ژمنتيا اړخ د پيغام رسوني د گټې تر څنگ يوه لويه گټه دا راوړي چې د ورځې پېښې او ورسره تړلې اصطلاحات او محاورات په مشرح ډول خوندي کوي لکه د زمری گلالی نظم چې نه يوازې د يوه خاص زماني حالت مفصله او مصوره شرح وړاندې کوي، ورسره په څنگ کې د (اشرار) غوندې اصطلاح د خوندي کولو تر عهدې وځي. همدا راز د ژمنتيا په مټ د پښتني تولنې سره د مشخص تړاو لرونکو سياسي او ټولنيزو پديدو لکه خان، ملا او نورو په اړه عام فهمه او منظوم تيوريکي بحث کوي.

## علمي ځانگړنې:

له علمي ځانگړنو څخه موخه هغه علمي ارزښتناکه هڅې دي چې د علامه رشاد په شاعرۍ کې څرگندې دي. په دې کې دوې خبرې د بحث موضوع جوړوي. يو په شعرونو کې د متروکو الفاظو استعمال او بل د محلي ځايونو د نومونو کارونه.

د متروکو او په ځانگړو لهجو کې د قيد الفاظو را ميدان ته کول او په عوامو د هغوی منل د ژبې د تشخص د پياوړي کولو په لاره کې يو ډېر اړين امر دئ. دا

کار تر ډېره ځايه پوري ژبپوهان کوي. هغوی زاړه او په لهجو کي مقيد الفاظ لټوي او خپل څېړنيز ميتود ورباندي عملي کوي او بالآخره ئې په ژبه کي د دودولو فتوا ورکوي خو د دې کړی فتوا د عوامو له خوا اکثراً نه عملي کېږي ځکه يو نوی شی، چي دوی ئې ارزښت او ماهيت هم نه سي درکولای، ډېره ګرانه ده چي ورته د منلو وړ دي وګرځي. ژبپوهان يوازي د دې الفاظو د دودولو فتوا ورکوي خو د اجرا له پاره ئې بيا هم د پېلابېلو ډګرونو ليکوالانو او خطيبانو ته اړ وي څو هغوی ئې په خپلو ورځنيو خبرو اترو کي په کارولو سره ورو ورو عام فهمه او عوام قبوله کړي. په دې لړ کي له ژبپوهانو سره د داسي ډګر د ليکوالانو همکاري حياتي ارزښت لري چي هغوی تل د عوامو سره په تماس کي وي او خبري ئې پر عوامو ترخې نه لګېږي. داسي څوک تر شاعر ها خوا بل څوک کېدای سي؟ که شاعران په خپلو شعرونو کي په منطقي ډول او د تدبير په کارولو سره د ژبپوهني په فتوا د دودېدو وړ محاورات، اصطلاحات او الفاظ دود کړي، دا کار به نه يوازي ژبي ته د هغې د تشخيص په ورکټلو کي لويه مرسته وکړي، ورسره په څنګ کي به د ژبي په غنا کي کومک وکړي. کله چي کومه ژبه د الفاظو، اصطلاحاتو، ترکيبونو او محاورو پراخه زېرمه ولري، نو په هغه ژبه کي ليکلي آثار هم جالب وي او څوک خسته کولو ته نه پرېږدي. علامه رشاد نه يوازي دا چي د يوه پوره صلاحيت لرونکي ژبپوه په توګه ئې د لغتنامو، قاموسونو او لغوي څېړنو له لاري د پښتو د متروکو، مهجورو او په ځانګړو لهجو کي د قيد الفاظو په پلټلو، څېړلو، کره کولو او د دودېدني له پاره د معرفي کولو په برخه کي خپل نه هېرېدونکي خدمات کړي دي چي په نتيجه کي ئې د يادو سوو موضوعاتو په باب څو ټوکه چاپ او ناچاپ آثار هست کړي دي، ورسره په څنګ کي ئې په خپلو شعرونو کي د دې الفاظو په کارولو هڅه کړې ده څو هغوی عوامو ته ورسوي او په ورځنيو ليکنو کي د داسي الفاظو د کاروني پيغام په ټوليز ډول شاعرانو او ليکوالانو ته ورکړي. که څه هم يو وخت داسي ذهنيت موجود وو چي په دې کار سره شاعري د ذوق پرستی خاصيت له لاسه ورکوي او په دې توګه نو د شاعری څخه هم د تخليق پر ځای يوه څېړنيزه چاره جوړېږي خو د دې اند په جواب کي دا دلايل وړاندي کېدای سي.

۱- کله چي داسي الفاظ په نظمونو کي عوامو ته وړاندي کړل سي، نو هغوی به ئې نسبتاً ژر په ياد کړلای سي ځکه د نظم يادول د نثر په پرتله آسانه وي.

۲- د بشپړي تجربې د انتقال د وسيلې په توګه په نظم کي مفاهيم نسبت نثر ته جامع او هم په آسانه ډول د پوهېدني وړ وي، په تېره بيا چي له شعر سره د ذوق خړوبوني ځواک مل وي.

۳- د هر شعر په لمنليک کي د دغو نويو دودېدونکو الفاظو مانا وي وړاندي

کول به د داسي الفاظو د کاروني له امله په اشعارو کي ذوق پرستی ته د زيان رسېدلو اندېښنې ته جواب ووائي چي البته علامه رشاد دا کار کړی او په لمنليک کي ئې د الفاظو ماناوي وړاندي کړي دی.

د علامه رشاد په شاعری کي د دې ډول الفاظو د موندلو له پاره کېدای سي د هغه شعري ټولګو ته مراجعه وسي او پکښې دا الفاظ په پرېمانی وموندل سي. بايد يادونه وکړو چي دا هڅه د ژبي د غنا له پاره د علامه رشاد يو شعوري علمي کمپاين دئ.

همدارز د هغه په شاعری کي يوه بله محسوسه ځانګړنه د محلي ځايونو د نومونو استعمال دئ چي نه يوازي د شعر لوستونکي په دې سره واقعيت ته نژدې کوي اِو د هغه حسونه لا زيات متوجه او مصروف کوي، ورسره په څنګ کي د پښتنو تر منځ د يو بل په سيمو کي د ځايونو په مروجو نومونو باندي د خبرېدني او پوهېدني په برخه کي ګټور ثابتېدای سي چي دا کار د سيمو تر منځ د پوهاوي د رامنځته کولو په چاره کي يو اقدام کېدای سي.

يوه دريمه ځانګړنه چي د علامه رشاد شاعري ئې لري، د مستندو تاريخي پېښو منظومول دي چي کېدای سي ځيني خلک دا کار تائيد نه کړي خو دا ځکه بايد يوه مثبته هڅه وبولو چي په نظم کي د واقعو په اورېدلو سړی کولای سي په آسانی سره هغه ذهن ته وسپاري او هغسي واقعي لکه علامه رشاد چي انتخاب کړي دي، که **منظومي** کړای سي، کېدای **سي نه** يوازي په شعري غنا کي حساب سي، ورسره په څنګ کي به له خلکو سره د تاريخي حادثو په آسانه يادولو کي مرسته وي.

بالآخِره دا چي آيا علامه رشاد توانېدلی دئ چي د ژبپوهنيز کمپاين او همدا راز ژمنتيا په وجود کي دي خپله شاعري له هنري اړخه له زيانمنېدلو وژغوري؟ د دې جواب دا بيت ډېر ښه کولای سي.

ستا څخه به زېړي دا د غرونو د لړمون او به
يخي او روڼې د ونو، غنو د ژوندون او به

په دې ځای کي د يوه غير عام لفظ (غنو) په کارولو چي د ځوزلرونکي وابنه په مانا دئ، علامه رشاد په خپل شعر کي د هنريت کنټرول له لاسه نه دئ ورکړی. زه به هم د (مشت نمونه خروار) په تائيد پر همدې يوه مثال بسنه وکړم.

د هغه روح ته په دعا

* * *

## د خوراک او څښاک آداب

۱. تر څو مو کوم خوراک ته ښه اشتها نه وي مه يې خورئ (اداب الصالحين).
۲. ډېر ګرم خواړه مه خورئ (نفع السائل والمفتي).
۳. کوم خواړه چي بد بويه سوي وي هغه مه خورئ (نفع السائل والمفتي).

* * *

# دعلامه رشاد بابا ادبي او سياسي شخصيت ته لنډه کتنه



حاجي فضل محمد پنهان

خدای بخښلی پوهاند علامه رشاد بابا د افغاني ټولني لوی استاد، عالم، اديب، تاريخ ليکونکی، سياست پوه، ژب څېړونکی، شاعر، محقق او يو پېژندل سوی بين المللي شخصيت وو. زه به څنګه وکولای سم چې د هغه ستر پوهنيز شخصيت تر څپل مات قلم تر څوکي لاندي د هغه پر مدبرانه او متبحرانه شخصيت دي څه وليکم ، هغه څه چي د ده د علمي، ادبي، تاريخي، سياسي شان سره وړ او مناسب وي، که چيري د علامه بابا پر علمي، ادبي، تاريخي، سياسي، او فرهنګي شخصيت باندي کتابونه وليکل سي زما په آند مبالغه به نه وي سوې لکه ميرزا حنان چي د حميد باباپه هکله ويلي دي::

د حميد د شعر و بحر ته حنانه
يو څوڅاڅکي دي لوېدلي ستا ابيات

ځکه نو د فاضل استاد علامه رشاد بابا پر پوهنيز شخصيت څه ليکل زما تر نيمګړي پوهې او توان پورته خبره ده، خدای بخښلی علامه بابا د علم ،ادب، سياست په اسمان کې يو ځلانده ستوری وو. هغه په خپلې مدبرانه پوهې سره په زرګونو شاګردان روزلي او افغاني ټولنې ته ئې تقديم کړي او د پښتني ټولنې تياره ګوټونه ئې روښانه کړي دي. پوهاند علامه رشاد بابا په ۱۳۰۰ل کال کې د کندهار ولايت په لومړۍ ناحيه د بابړو په کوڅه کې په يوه علمي کورنۍ کې پيدا سوی دئ. د پوهاند صاحب په قول چې ويل به ئې: زما پلار عبدالغفورخان د خپل وخت يو متبحر شخصيت وو، چې په انګليسي، عربي، فارسي او اردو ژبو پوهېدی او د اسيا په ډېرو ملکو کې ګرځېدلی وو. دا هغه وخت وو چې افغانانو خپل سياسي استقلال د برتانوي استعمار څخه اخستی وو. د فاضل استاد د پيدا کېدلو په کال (۱۳۰۰ل) په کندهار کې لومړی اخبار يعنې طلوع افغان په همدغه کال يعنې ۱۳۰۰ل کې د مولوي صالح محمد خان (هوتک) له خوا تأسيس سو، په ۱۳۰۰ل کال د حمل د مياشتې پر لومړۍ نېټه په کابل کې امان افغاني جريده خپره سوه، په ۱۳۰۰ل کال کې په کابل کې د ارشاد النسوان جريده هم خپرېدل.

علامه رشاد بابا د شاه امان الله خان د پاچهۍ په دوره کې ښوونځي ته شامل سو، چې د دريم ټولګی په اخيره کې د سقوي تاړاک توره پرده پر ټوله افغانستان وغوړېده او هر څه د خاورو سره خاوري سول.

په ۱۳۱۳ل کال کې علامه بابا خپل لومړی شعر ويلی دئ، په ۱۳۲۰ل کال کې ئې خپله لومړۍ ادبي څېړنه چې د عبدالرّسول ماشوري د شعري ديوان او سفرنامې په اړه وه په طلوع افغان کې نشر او خپره کړه.

فاضل استاد تر ۷۰ کالو زيات د پښتو ژبې، پښتني ادب، پښتني تاريخ او فرهنګ په را ژوندي کولو کې علمي تحقيقات او څېړني کړي دي، او تر سلو (۱۰۰) زيات علمي، ادبي او تاريخي کتابونه ئې ليکلي دي، چې ځيني چاپ سوي دي او ځيني ئې ناچاپه پاته دي.

پوهاند علامه رشاد بابا په ۱۳۲۵ل کال کې د ادب د ډګر څخه د سياست ډګر ته داخل سو. چې د ده د سياسي ژوند پيلامه له همدې نېټې څخه شروع کېږي چې په هغه وخت کې يو ګوند کې چې د ويښ زلميانو په نوم يادېدی شامل سو. ښاغلي محمد علم بڅرکي په خپل کتاب (ويښ زلميان) کې ليکي:

چې په ۱۳۲۵ل کال کې د ويښ زلميانو ګوند جوړ سو او مؤسسين ئې دا وه:

۱. فيض محمد خان انګار
۲. استاد بېنوا
۳. مولوي قيام الدين خادم
۴. پوهاند رشتين
۵. ګل پاچا الفت

۶. ارسلان سلیمي
۷. غلام حسن خان ساپی
۸. نورمحمد ترکی

دغو کسانو چې نومونه ئې پورته ذکر سول په کابل کې یوه ادبي ټولنه جوړه کړه او په کورو کې به ئې علمي او ادبي غونډې کولې چې دغه ادبي غونډې په سیاسي غونډو واوښتلې چې په ډېر لږ وخت کې د افغانستان ټولي سیمي خاصتاً پښتني سیمي لکه کندهار او ننګرهار ئې تر خپل نفوذ لاندي راوستلې.

سید مسعود پوهنیار بیا لیکي: د ۱۳۲۶ کال په شاوخوا کې د حاجي ګل محمد خان په کور کې چې د خدای بخښلي فیض محمد خان انګار پلار وو، چې کور ئې د کابل په چنډول کې وو، د افغاني منورینو له خوا یوه غونډه جوړه سوه، چې په هغه کې له کندهار څخه لوي استاد علامه عبدالحی حبیبي، فاضل استاد علامه رشاد بابا، محمد رسول پښتون، قاضي بهرام اڅکزی، عبدالهادي خان توخي، جیلاني خان الکوزی او ځیني نور کسان هم وه.

د ننګرهار او لغمان څخه پوهاند صدیق الله خان رښتین، شمس الدین مجروح، مولوي قیام الدین خادم، ګل پاچا الفت او غلام حسن خان ساپی.

د کابل څخه میرغلام محمد غبار، ډاکټر محمودي، غلام محی الدین زرملوال، محمد ارسلان سلیمي وردګ، میر محمد اسمعیل مبلغ او داسي نور وه چې د ویښ زلمیانو ګوند ئې تاسیس کړ. د ویښ زلمیانو مرامنامه داسي یوه مرامنامه وه لکه په کال ۱۲۸۸ المریز کې د اخواني افغاني یا د مشروطه خواهانو د ګوند د خوا چې جوړه سوې وه، خو په لږ توپیر سره.

الف: د ویښ زلمیانو د ګوند مرامنامه:
۱- د اسلام دین او اصولو ته احترام.
۲- د مطلقي شاهي پرځای مشروطه شاهي.
۳- د عالمانو او مشایخو عزت او احترام.
۴- د معارف تقویه کول او د مطبوعاتو آزادي.
۵- د ډیورنډ منحوسه کرښه غندل کوم چې تور امیر په ۱۸۹۳ زېږدیز کال د برتانوي نماینده سره په خپل سر امضا کړه.
۶- په افغانستان کې د ټولو قومونو او نژادونو تر منځ ملي وحدت راوستل.
۷- د پښتونستان په جوړولو کې د پښتنو او بلوڅو ورونو سره مرسته کول.
۸- له ظلم، خیانت، غدر، رشوت، اداري فساد او د دروا غو څخه ځان ساتل او د هغه سره مبارزه کول.
۹- د لویي پښتونخوا (لوي افغانستان) او سېډونکو ته په یوه سترګه کتل د قومي او قبیلوي اختلافاتو پرېښول.

ب: د مشروطه له خواهانو د ګوند مرامنامه:
۱- د اسلام دین او اصولو ته احترام کول.
۲- په افغانستان کې معارف او مطبوعاتو ته وده ورکول.
۳- د افغانستان سیاسي آزادي تر لاسه کول.

۴- ټـولنيز عـدالت، مـساوات او د ظلـم مخنيوی.

۵- د افغانستان د ټولو قومونو او قبيلو تر منځ ملي يووالی راوستل.

۶- په هيواد کي بې پرې او آزاد انتخابات کېدل.

۷- د سولي او پخلاينـي لـه لاري د ملت د اصلاح کولو په لاره کي د زور څخه نه کار اخستل.

۸- د ملي حقوقو د لاسته راوړلو او د ملت د استازو د نظر لانـدي د حکومـت رژيـم مشروطه کول.

په ۱۳۴۳ل کال چي د افغانستان نوی اساسي قانون منځ ته راغلی چي د نوي اساسي قانون په ۳۲ ماده کي راغلي وه: چي د هيواد ټوله خلک بې له قومي، نژادي، ژبني او منطقوي تعصب څخه پرته د ټولنو د جوړولو حق لري. د نوي اساسي قانون د ۳۲ مي مادي په اساس تر ټولو د مخه لـومړی نور محمد تره کی د ويښ زلميانو د ګوند څخه ووتی او يو جلا ګوند ئې د خلق ډيموکراتيک ګوند په نامه تاسيس کی. چي ايډيولوژي ئې پر مارکسيزم او لينزم استواره او يو کمونيستي ګوند وو، چي د پخواني شوروي اتحاد د خوا څخه حمايه کېدی او يوه جريده ئې د خلق په نامه خپرول چي تر پنځمي ګڼي وروسته بنده سوه چي وروسته د خلق په ګوند کي انشعاب راغلی چي پر خلق او پرچم ډلو وويشل سول.

دوهمه ډله د ډاکټر محمودي ډله وه چي د ويښ زلميانو د ګوند څخه بېله سوه او د شعله جاويد په نامه ئې يو مارکسستي کمونستي ګوند جوړ کی چي د چينا د خوا حمايه کېدی.

دريمه ډله چي د ويښ زلميانو د ګوند څخه جلا سوه هغه افغان ملتيان وه چي دوی هم د نور احمد اعتمادي د صدراعظمی په ۱۹۶۷ زېږديز کال کي پر دوو برخو ووېشل سول د افغان او ملت چي د افغان مشري پاپا کول او د ملت مشري فدايي کول. د ويښ زلميانو هغه پاته کسان په ۱۳۴۵ل کال کي د محمد هاشم ميوندوال ګوند ته چي نوم ئې (مشرقي ډيموکراټ) وو شامل سول په ۱۳۵۰ل کال په اخرو کي د ويښ زلميانو غړي لکه لوي استاد علامه حبيبي، فاضل استاد علامه رشاد بابا، استاد بېنوا، فيض محمد خان انګار، مدير جيلاني خان الکوزی، محمد ابراهيم خان خواخوږي محمد ابراهيم خان وکيلي او داسي نور رسماً د مترقي ډيموکراټ ګونده ووتل. خو محمد علم بځرکی، عبدالغني خان ميوندي، غلام دستګير پوپل او ځيني نور کسان د ميوندوال په مترقي ډيموکراټ ګوند کي پاته سول. علامه رشاد بابا خپل ټول عمر علاوه پر سياسي مبارزه د خپل ولس او پښتني ټولني په تحقق او څېړنه کي تير کړی دئ او د خپل هيواد په زرو ځوانان ئې روزلي او تربيه کړي دي او د افغاني ټولني د خدمت له پاره تقديم کړي دي.

روح دي ښاد وي

استاد عبدالرؤف بېنوا

# دزړه خواله

ګرانه ملګريه!

وايي چې نوی کال راتلونکی دئ، د نوي کال په سر کي به پسرلی وي، پسرلی به له ځانه سره د نوي ژوند زېرې راوړي، دا زېرې به په زړو کي د آرزو درد پيدا کړي، دا درد به د ناامېدۍ خزان وهلې غوټۍ وسپېني او له هغې به د مسرت او اطمينان ګل پيدا سي.

دا چې دا زېرې به له کومي خوا او کومو زړونو ته وي؟ دا د نوي ژوند د وړمې په لورونه او پېرزوينه اړه لري خو دا چې دا وړمه به د زاړه ژوند د خاوندانو تر بڼه هم ورسېږي که نه؟ لا معلومه نه ده.

ځومره به د افسوس ځای وي که د نوي ژوند وړمه زما او ستا تر کوره را ونه رسېږي او زما او ستا د آرزو خزان وهلې غوټۍ همدا شان د نا امېدۍ په سړو اوسېليو کي ناغوړېدلې پاته سي؟

هغه وخت به نو زما او ستا زوړ ژوند د نوي کال په غېږ کي داسي ښکاري لکه زړه بوډۍ د ناوي د واده په کاليو کي.

خو هغه زړه بوډۍ به د ناوي په پسول کي ضرور پر ځان وخاندي، مګر زه او ته به موسکي کېدلای هم نه سو، بلکي لکه زلمۍ ناوې چې د بوډۍ په ږيره پوري خاندي نوی ژوند به هم دا شان په ما او تا پوري وخاندي.

دا منم چې نوی کال له ځانه سره د نوي ژوند زېرې لري خو دا د هغه چا لپاره چې ځان يې نوي ژوند ته جوړ کړی وي، لکه د بې سوره زاړه رباب څخه چې نوې نغمه ږغول مشکل دي، زړو مغزو ته د نوو افکارو لار موندل هم سخت او ګران کار دئ.

ملامت څوک دئ؟

نوی کال که زوړ ژوند؟

نوی ژوند که زوړ کال؟

زه او ته؟ که هغه څوک چې زما او ستا د ژوند لارښوونه ورپوري تړلې ده؟

هر څوک چې ملامت وي خو د نوي ژوند د خندا وړ زه او ته يو.

نو راځه چې اوس خپل کور او خپل ځانونه د نوي کال د نوي ژوند زېري ته تيار کړو، او د دې پر ځای چې نوی ژوند پر موږ وخاندي موږ پر خپل زاړه ژوند وخاندو او پخپله خندا د خپل نوي ژوند د آرزو غوټۍ وسپېنو او د خپل راتلونکي مسرت او اطمينان ګل ورځني جوړ کړو. که نه وي افسوس دي وي د هغه چا پر حال چې کال نوی سي خو د ده ژوند زوړ وي، يا نوی کال د نوي ژوند نوي آرزوګاني راوړي خو د ده زړې آرزوګاني لا هم تر سره سوي نه وي.

هنر او ادب

چلوونکی:
وحيد سباوون

عبدالقدیم پتیال

## محل

د ذهن ښار کې یو محل لرمه
د عشق پر سبک دئ دغه ځای جوړ سوی
د هنرونو مجموعه ده دغه
له ابدي میني ئې خټه جوړه
پکښې راځوړندي تابلوي هر ځای
هره تابلو ئې ده د میني داستان
هر یو انځور ئې د خیالونو جهان
پکښې هواري د رازو سرې غالۍ
خو دا سرخي ئې زما له وینو څخه ده
زما د زړه له څاڅکو – څاڅکو وینو
په ډېر هنر نقش و نګار پر سوی
د محل ټوله دېوالونه ځل کړي
دغه ځلا وه د هیندارو هنر
ما کړی شپه بیا تر سهاره پوري
د خپل نظر په زور ... بلي
همدا بلي او رنګیني آینې
ساتلي دي چي پیکه نه سي هیڅ وخت
محل خاموش دئ د درنې شپې په څېر
مګر یو تشي روښنایي ساتلی
د یو پردېسي سلیقې په حکم
دلته او هلته ځای – ځای شمعي بلي
د ځیګر وینه د دې شمعو ژوند دئ
پرې ایښي نه دي مړه کېدو ته مي دوی
د الاهو په ترنم کي موسیقي رغېږي
دا موسیقي زما د زخمي – زخمي خیالونو زګېروی دئ
دې ترنم کې زما د سوي (آه) تالونه ګډ دي
دې زمزمه کي زما د زړه هره درزا نخېږي
د موسیقی له ختمېدو سره شپه وکړي وداع
او زه د ورځي په یاد پرېولمه محل په اوښکو
تر څو چي شپه راځي او بیرته زما کیسه پیل سي

لړم – ۱۳۸۸ ش

لایق ځیرک

## ملغلري

ګوره خپه چي نه سې
چي تا به وخندله
ما دي پر خوله لاس نیوه
خبره داسي وه چي
دا ستا په خوله کي پټي
دي ملغلري پټي
چي څوک ئې ونه ویني
چي څوک ئې ونه لوټي

## د سهار ستر ګه

لکه د سهار ستر ګه چي
له خوبه وپاڅېږي
ورته شینکي غوړېږي
ته هم همداسي ګراني
زما لمر مخي ګراني
ژر راځر ګنده سه
ما وغوړوه!

## څپېره

ما مي له خپلي میني
هغې ته ځان ووایه
ورته جانان ووایه
ورنه مي وغوښتله
چي اننګي دي ښکل کړم
خو دې:
له قهره څخه
پر مخ څپېره راکړه
له پاسه تندر وسو
اسمان پر ما باندي
ښه ډېر وژړل

بشیراحمد بشارت

## غزل

د وجود ښار ته مي پردېس زړه ستا له ښنده راځي
د خوښۍ اوښکه مي تر سرو لېمو څرګنده راځي
باران د پرخي چي ورتوله کړي د شپې لمنه
څاڅکي د ګل د پستو شونډو تر پیوند راځي
چي شنه لوګي پر سره انګار سي له کبابه پورته
داسي اهونه مي د وچ ستوني تر خونده راځي
د زړه په ونه د بېلتون چنجي خولې ولګوي
اسمان د سترګو ته باران له پرېشانه راځي
عکس دي ګرځوم د سترګو په چوکاټ کي داسي
چي لمبېدو تې یو څو اوښکي زما له ژونده راځي
ته سمندر سمندر حسن ګرځوه له نازه
د وچکالۍ ځپلي زړه ته مي اوس تنده راځي
که کسي کښېږدي **بشارته** د سکروټو منځ کي
حلقې دود ونه بې د سرو سترګو له سپنده راځي

*****

عصمت الله بهیر

## غزل

څپې د عشق او محبت په سرې اور لګوي
د عمر داسي شان حالت په سرې اور لګوي

د زړه د درد یوه لحظه په تېرولو کال سي
د ژوندون داسي اسارت په سرې اور لګوي
ته ئې مغروره بې پروا او په هیڅ نه ئې بنده
دا شان دوران د شخصیت په سرې اور لګوي
توري د حسن دي پر زړه زما روښا راولي
ځکه سپېڅلی تلاوت په سرې اور لګوي

هره ادا ئې پر زړګي لکه د غر پرېوزي
د مړو کتلو شرارت په سرې اور لګوي

احمد فاني

## غزل

د زړه خبري به په زړه کي ساتې
غمیان به هر وخت په ښیښه کي ساتې

سترګي مو ښکلو ته آزار ورکوي
لېونیان څنګه په قبضه کي ساتې
ستا د ځوانۍ شېریني هم ورکېږي
تر څو به دا پلمېټ په خوله کي ساتې
لکه دوا د لمر طاقت نه لري
ښکلي به هر وخت په سایه کي ساتې

**احمد فاني** پر مخ ئې داغ پاته دئ
ته هم نښان په سپاره کي ساتې

*****

ګران آغا الفت یار

## مناجات

چي نسیم دي له زلفانو څه راتېر سي
چي تر ما پوري را رسي نو وږمه سي
نور منت د قاصد نه وړمه هیڅکله
چي ستا یاد او زما خیال سره جوړه سي
په سبب زما د مستۍ خو ته پوهېږې
که دي شونډې یو ځل بیا راپیمانه سي
دوی وای نوم د نجلۍ مه راوړه په شعر کي
سل مړونه دي تر یوې خور صدقه سي
له کاتب څخه لا یوه آرزو لرمه
زما ژوند دي د یار نوم ته نوشته سي
ته د شم په شان لمبه سه راته رېږده
**الفت یار** به ستا و مخ ته پروانه سي

فضل الرحمن علیزی

# غزل

ټوله ورځ درپسي ګرځمه تا غواړم
کله جنګ سم کله پرځمه تا غواړم

دا ستا هجر په ما داسي کانې وکړې
د ملنګ په شان په در ګرځمه تا غواړم

د زړه ورانګي مي په تا پسي تندک خوري
په ورو ورو لکه د لمر ځمه تا غواړم

دې بېلتون ظالم خو بیا دې ته مجبور کړم
ورمه کډه مسافر ځمه تا غواړم

ما ویل چي یو دیدن به دي پیدا کړم
ستړی ستړی له ګودر ځمه تا غواړم

دا پښې مي سوې تنهاکي په زړه ستړی
لکه سیوری مازیګر ځمه تا غواړم

زه **علیزی** دي کړم په داسي حال جانانه
لکه ړوند درپسي غور ځمه تا غواړم

---

# غزل

یاره د ستورو په کاروان کي دي تصویر لټوم
لکه د اوښکو په ګرېوان کي دي تصویر لټوم

زه دي د هجر غم یعقوب غوندي په پټه زغمم
په ړندو سترګو په کنعان کي دي تصویر لټوم

نور دي د کلي په کوڅو کي دیدن نه کومه
لکه مجنون غوندي بیابان کي دي تصویر لټوم

زه دي وصال ته له کلونو او کلونلېږم
لکه یوسف بس په کاروان کي دي تصویر لټوم

د **علیزي** د زړه قراره یاره چیرته سولې
لکه د تن روح په جان کي دي تصویر لټوم

احمدالله څرګند

# غزل

له ژړا سره همراه لکه لېمه وای
جوړ د لعلو جواهرو لکه زړه وای

د سینې کان مي لوټلی په ژړا وای
جواهر ئې په لېمو کي زړي غله وای

د دیدن وای د ښو قلم په ګوتو
زما زړه ئې رسم کړی سنا پر زړه وای

د زړه کور مي د عشق سیند وای لاهو کړی
د دریاب د غېږي خوب مي پر لېمه وای

د فریاد له کلي کډه مي وای کړې
د سکون په هدیرو کي وای بیده وای

له زخمو سره خلوت کي اوسېدلای
چي چنباک د زړګي ویني غم خواړه وای

ما به خط وای د جانان په نوم ورکړی
کاشکي ساندي او فریاد زما په خوله وای

زه **څرګند** که ګاونډی ستا د کوڅو وای
نه به ته وای ګیله منه نه به زه وای

---

# څلوریځه

یاره چي ته یې پر هغه لوري
غم خو دي نه وي ښادي دي اوري
د مخ بر پښنا دي یو وار ښکاره که
چي ښه جمال دي خواران وګوري

ملا حسن اخوند - د تلوکان

پوهنوال احمد شاه زغم

# د اروابناد استاد عبدالشکور رشاد څېړنیز مېتود



**سریزه:**

علامه استاد عبدالشکور رشاد د څېړني او تحقیق په ډګر کي ښایسته سپیني سپوږمۍ ته پاته کېږي چي د روڼا تر څنګ ښکلا او حسن هم لري. څېړنه، تحقیق یا (Research) د لیکني هغه بهیر دئ چي د یو علمي، ادبي، تاریخي، ټولنیز او... هدف د څرګندولو او موندلو له پاره تر سره کېږي. څېړنه نوې پنځونه او رامنځته کول نه دي، بلکي په زړو متونو یا موضوعاتو کي نوي پلټني او موندني دي، دا لټونه د یو هدف د تر لاسه کولو له پاره ترسره کېږي، د محقق ناپایه تنده هغه مهال خړوبېږي چي خپله ورکه ومومي، ځکه نو څېړنه:

> په زړو کي لـــټول او نـــوی خـــرک دئ
> خپل هدف په لوري تګ دي ګر چي ورک دئ
> بس د زړه ویني پرې خـــوره او لـــټوه یې
> په غـــوټه به آخـــر مـــومې خـــیل مـــرام!

د چا خبره په ټولو ورکو پسي څراغ او لاټین اخیستل د محقق دنده نه ده بلکي هغه څه چي د یوې ټولني د فرهنګي بډایني لامل ګرځي. محقق ئې تحقق غواړي، په ټولنیزو واقعیتونو پوهېدل پوره درک غواړي خو د هغو څېړنه او سپړنه د اولس او خلکو پوهونه ده.

د یو څېړونکي خبره، "د تحقیق ډګر. د شنه سمندر تل ته ځان ورغورځول او هلته د قیمتي دانو موندل دي. د سمندر په تل کي د نامعلومه قیمتي دانو موندل د ماهر لامبوزن کار دئ". د تحقیق بهیر په زړه پوري او لایتناهي مزل دئ، خو دغه مزل باهدفه مزل دئ، نه یوازي محقق، بلکي نسلونه سرمنزل ته رسول دي.

> ورکه مونده کېږي، خو چاودن د زړګي غواړي
> څوک چي پسي ګرځي نو به ډکي لیي راوړي

**د تحقیق کلمه:**

"د حق له مادې څخه اخیستل سوې او د حق له پاره ډول ډول معناوي راغلي دي، د هغو له ډلي سیده، سم او د باطل

ضد ثابت او د واجب معنا ورکړه سوي، او له همدې امله د باري تعالی یو نوم حق هم دي"(۱: ۳).

اصطلاحاً تحقیق یا څېړنه، د حقیقت د کشفولو له پاره یوه لاره په نښه کول دي، د حقیقت تعریف او مطالعه ده. د نویو او رښتینو پوهو د تر لاسه کولو له پاره په علمي توګه پلټنه کول دي، دغه پلټنه، پوهه او درایت غواړي او د روښانفکره پوهانو کار دئ. دغه کار (څېړنه) عالي پوهه او پوره پوره مطالعه غواړي، داسي نه چي دغه درونډ او له مسئولیته ډک کار هر څوک تر سره کولای سي او دغه کار د هري ورځي کار دئ، رخصتي نه لري.

"نه دي کار د هر نا اهل بوالهوس"

یا:

نو خطان واړه ارمان کا باري ځــکه
نه رسېږي د پرون په چاري نن لاس
(۲: ۸۹)

"تحقیق د علمي او ټولنیزو ستونزو او موضوعاتو درک او راسپړنه ده، خو په پوره علمي ډول سره تر سره کېده غواړي"(۳: ۳۴). یو پوه وایي: "د څېړني کار له کره کتني سره تړلی دئ، یعني څېړونکی باید د کره کتني په اصولو پوه او له دغه بهیر سره سم چلند ولري. هره څېړنه نوې موندنه ده، که دغه موندنه (تحقیق) په علمي پوهي سره نه وي تر سره سوې او یا تر سره نه سي نو د ګټي پر ځای به ئې تاوان ډېر وي. هغه پل چي مخکنیو ایښی او اخیستی دئ، پر هغو تلل کوم کشف او موندل نه دي، بلکي د هغو لارو اوارول، ښایسته کول او کرېږول دي چي نور پرې تللي او راځي".(۳: ۱۷)

د تحقیق بهیر یو ډول فني اصول دي، دا اصول په فني توګه او فني پوهه تر سره کېږي او د علمي کارونو د لاپیاوړتیا له پاره د (حیات اوبه) دي. هغه قومونه د حیات له اوبو ګټه پورته کولای سي چي په څېړنه پوه او نومیالي پوهان ولري. زموږ په هیواد کي د نورو څېړو کو تر څنګ استاد رشاد همدا ډول نومیا ی وو.

علامه عبدالشکور رشاد زموږ د هیواد او سیمي په کچه هغه وتلې نامتو څېړه ده چي د ډېرو علمي بریالیتوبونو تر څنګ د تحقیق، څېړني یا Research په ډګر کي لوی لاس او پیاوړی مهارت لري. استاد رشاد په څېړنه کي ځان ته جلا لار او مېتود لري، د یو با ارزښته هدف له پاره ارزښتمنه څېړنه ترسره کوي. یوه موضوع تر هغو څېړي او رالوځوي ئې، چي ټول لوستونکي پرې پوه کړي، د ده هره څېړنه یو علمي او ټولنیز ارزښت ته پاته کېږي، هره څېړنه ئې برالا نتیجه لري او آن ویلای سو د استاد هره څېړنه یو نوی علمي او ادبي کشف او اثر دئ، نوموړی که هره موضوع څېړي، د نوی علمي مېتود په طریقه ئې څېړي. د یوې موضوع د څېړني او سپیناوی له پاره په لسګونو علمي دلیلونه او مأخذونه وړاندي کوي، له راوي وروسته بل راوي ته ځي او آن د راوي، راوي لټوي. اروابناد استاد رشاد دغه ټول کارونه په پوره مینه، ډېر مهارت او خورا حوصله تر سره کوي د استاد د

علمي ژوند اړخونه ډېر ستر او درانه دي، خو تر نورو ئې د استادۍ او څېړنې اړخونه ډېر برجسته دي.

## د استاد رشاد د څېړنیزو آثارو هویت او ارزښت:

څېړنیز آثار، هغه قیمتي شتمني ده چې د ملتونو د ویاړ لامل ګرځي. د اروابناد علامه استاد عبدالشکور رشاد ټول څېړنیز تحقیقي آثار که په هره برخه کي دي، زموږ د ملت له پاره د یوه علمي وړتیا، هویت او باارزښته سند مثالونه دي. د دغو آثارو علمي هویت به هغه وخت لا ارزښتمن وي چې زموږ ټول پوه او علمي پښت ئې د څېړنې وخت او موقع ومومي هله به ګوته په غاښ سي چې استاد رشاد او حبیبي او... څومره فرهنګي او کلتوري لوریني پر دې ملت کړي دي!

لا به هله د حیرت ګوته په غاښ کړي
چي مضمون د ژوندانه ته مي یار څېر شي

استاد عبدالشکور رشاد که په کابل پوهنتون کي د استادۍ دنده درلوده او یا د علومو په اکاډمي کي ئې خپل قلم چلولی او د الله ﷻ لاهوتي سوګند چې: (نٓ وَٱلۡقَلَمِ وَمَا يَسۡطُرُونَ ۝) (۴-...) ته ئې لاهویت ورکړی دئ او دغه الهي زرین قول ئې لا مزین کړی دئ. د دغه مسئولیت د پوره درک له مخي خدای بخښلي استاد څه د پاسه (۷۰) کاله خپل خوږ ژوند لیکني او څېړني ته ورو باخښنه او داسي څېړنیز آثار ئې رامنځته کړل چې هره کرښه ئې تلپاته هویت او ارزښت لري. استاد عبدالشکور رشاد "د ژوند په بهیر کي یو شمېر باارزښته آثار لیکلي او په سلګونو عنوانه مقالې او کتابونه لري د هغې له ډلي څخه کابو (۵۹) عنوانه چاپ او تر (۸۰) ډېر ناچاپ پاته دي" (۵-۷۱).

باید وویل سي (تخلیقي آثار) او راټولوني ډېر ځله، ډېر ژر د چاپ او خپرونو توفیق مومي، خو څېړنیز آثار تر ځنډه پوري ناچاپ پاته کېږي، علامه رشاد په وار وار د نورو دوستانو په آثارو څېړنیزي سریزي لیکلي، شنني ئې کړي او کابو ډېري لیکني او ډېري څېړني ئې د استغنائي کلتور له مخي ناچاپه پاته سوي هم دي. هغه آثار ئې چاپ سوي چي د نورو له خوا لاس په لاس اړتیا ورته پیدا سوې ده او نور ډېر ناچاپ دي. د علوموا کاډمۍ ځوانه او ځیرکه محققه جمیله سروري وردګ د اروابناد صدیق روهي په حواله لیکي: "علت دا دئ، ده ته خپل نفس او پښتونولي اجازه نه ورکوله، چې د کتاب د چاپولو غوښتنه د چا څخه وکړي، اکثره کتابونه ئې د علمي مؤسسو له خوا چاپ سوي دي، استاد هیڅکله د خپلو آثارو او لیکنو د چاپ له پاره کومي مرجع ته مراجعه نه کوله، ډېر ځله داسي پېښ شوي چي یو شمېر خواخوږو فرهنګیانو د استاد ارادتمندانو او د علمي مؤسسو له ډېر ټینګار وروسته، په دې توانیدلي چي له پوهاند رشاد څخه یو کتاب واخلي او چاپ ئې کړي".(۶-۷۲)

د اروابناد استاد تولي ليکني او مقالې درنې څېړنې ته پاته کېږي او هره څېړنه ئې يو کره او معتبر اثر ګڼلای سو او آن ژوندي مأخذونه دي. د چا خبره د ده هره ليکنه ارزښتمنه ده، چې هره ليکنه به ئې د راتلونکو نسلونو له پاره د لارښود په څېر وي او راتلونکی نسل به د هغه په رڼا کې خپل د ستونزو مزلونه لنډوي.

د متن څېړنې او مقالوي څېړنيز مېتود تر څنګ ئې د لغت پوهنې، ريښه پلټنې، ويی شننې، ژبنيو څېړنو، پوهنو او لرغون پېژندنې په برخه کې عالمي پوهه درلوده. په دقيق او کره ډول به ئې د يوې کلمې، يوه نوم ريښه پلټله، لرغونه به ئې پسې پلټله او له ورځنی علمي مېتودولوژۍ او پوهونو سره سمه به ئې د هرې کلمې او نوم هويت برالا کاوه، د ده په څېړنه او مخامخ خبرو د هر چا تنده ماتېده او هرومرو به ئې خپل ځواب پکښې مونده. د استاد له ټولو څېړنو په تېره، د زړو متونو له څېړنې سره مينه ډېره وه. زاړه متون ئې په خورا دقت سره کتلي، څېړلي او بيا ئې ميدان ته راويستلي هم دي. په ادبپوهنه او لرغونپوهنه کې د ده آثار او آن هره مقاله يو نړيوال شهکار ته ورته دئ. د هر اثر په څېړنه ئې زړه چاودن زغملی او د سترګو او به ئې پرې وچې کړې دي.

## د علامه عبدالشکور د څېړنيزو آثارو جاج:

د استاد ډېرو څېړنيزو آثارو په خپلواک ډول د چاپ توفيق موندلی دئ. پر هغو آثارو چې استاد څېړنيزې سريزې ليکلي او يا ئې ورباندې نقد کړی داسې ګڼلای سو:

۱ - لودي پښتانه، په (۴۵۱) مخونو کې ليکل سوی، څېړنيز معلوماتي-تاريخي اثر دئ چې په نوې فکر سمبال او مستقل کتاب دئ.

۲ - د څمکنو ميا عمر، په (۹۴) مخونو کې برابر سوی، چې ډېره برخه ئې د استاد ماهرانه څېړنه برابروي. د ميا عمر د ژوند پېښو تر څنګ د هغه پر مفکوره او باورونو پوره څېړنيزه رڼا اچول سوې او مستقل اثر دئ.

۳ - دربارهٔ ظفرنامه اکبری و ناظم آن: په دغه آثر کې استاد انتقادي ليکنه کړې، تاريخي تېروتنې ئې د څېړنيز مهارت او مېتود له مخې په ګوته کړي او چاپ سوی دي.

۴ - د خيرالبيان لغتونه: دغه اثر چې کله پيدا سو، نو له نورو چاپونو سره سره درانه استاد په کابل کې ورباندې درې پياوړې څېړنيزې مقالې وليکلې، لغتونه ئې راويستل او له نويو معلوماتو سره ئې ټولنې ته وړاندې کړل، په حقه سره ويلای سو چې د استاد دغه څېړنه، په روښانې غورځنګ باندې يوه نوې علمي پېرزوېنه وه.

۵ - د پټې خزانې فرهنګ (لومړی ټوک) چې په (۱۰۱) مخونو کې چاپ سوی (۶۴) لغتونو په برخه کې پوره او کره څېړنيز معلومات وړاندې سوی دي.

٦ - د احمدشاه بابا د دیوان غورچاڼ، د ده لس مقالې، د ابن سینا مخارج الحروف، ډیلي د پښتنو په وخت کې، د امیر خسرو دهلوی هندي شاعري، د دولت لواڼي دېوان، د واصل روښاني شو شعرونه، ګلشن روه، د رابندر ناټ ټاکور (تاج)، احمد شاهي شهنامه، د میافقیرالله اسماء الحسنی، د حاجي جمعه بارکزي دېوان، حافظ الملک حافظ رحمت خان بړېڅی او د هغه کورنۍ او نور ګڼ شمېر څېړنیز آثارو باندې څېړنیزې سریزې لیکل شامل دي، چې موږ ئې د څېړني په برخه کې سرلاری ګڼلای سو.

استاد که پر تاریخ لیکنه کړې، یا په ادبیاتو کې او یا نورو برخو کې، د پوره پوهې، غوره درک او زماني اړتیا له مخې ئې تر سره کړې دي. د ده لیکنه نه یوازې نوې څېړنه او معلومات دي، بلکې نوی سبک او مېتود ئې ګڼلای سو. استاد د لویو موضوعاتو د سپینانوي له پاره څه چې د یوه لغت د معنا کولو او په هغه برخه کې د معلوماتو د ثقه کولو په خاطر دومره مراجعو ته دروازې ورټکولې چې د هر ژورنالست له حوصلې بهر کار دئ. د دغې خبرې ارزښت د پټې خزانې فرهنګ ۱۳٦۲ کال چاپ کې داسې تر سترګو کېږي، د مثال په ډول: د استاد عبدالشکور رشاد (آر Ar (اس. مذ) بنسټ، تاداو، بېخ، بنیاد، اصل) پسې څومره منابعو ته مراجعه کوي، نوموړی لیکي: "دغه کلمه پیرمحمد میاجي په Abl حالت کې داسې کار کړې ده:

شیخ متي چې خلیل و
دی له آره لــوی ولي و
(پټه خزانه. ۱۳۱مخ)

دغه لغت د میاجي تر زمانې سل کاله پخوا ملا الف هوتک همدغسې او په دغه معنی راوړی دئ:

دی له آره و ښــــاغلی
څه، که سو په ویر نتلی
(بحرالایمان – ۱۰۱۹هـ ق)

د ملاالف تر زمانې تقریباً دوه سوه کاله پخوا اکبر زمینداوري د ګوډ تېمور معاصر، دغه کلمه مؤنثه کار کړېده او Nom حالت ئې آره دئ:

دغه آره ئې سوه تېنګه زما په زړه کې
د رقیب سره خندا کړي هــوسـېږي

امیرمحمد خان وزیر راته ووېل: "په وزیرستان کې (آر) کلمه د اصل په معنی اوس هم ژوندۍ ده. مثلا ویل کېږي: خانګل له آره بزګر دئ. یعني له پلار و له نیکه بزګر دئ. یا خان میر له آره درواغجن دئ، یعني له ځایه (له اصله) درواغجن دئ". په سنسکریت کې Hir کلمې د جوهر، ذات، مغز او سوچه معنی درلوده، هیرا-Hir کلمه چې اوس په هندي ژبه کې د الماس په معنی کارېږي، له دغې ریښې جوړه ویله کېدله، چې لغوي معنی ئې اصیل (جوهر) وو، ویل کېږي په آریا Ariya او ایریا Airiya (Airya) کلمو کې چې د اصیل او شریف معنی لري (iay) د نسبت شاوندی دئ، ریښه ئې (Ar) یا (ir) چې د اصل او مجاز اشرف معنی لري، ابوالفرج قدامه بن جعفر

بغدادي(۳۲۰ هـ ق مړ) هم په کتاب الخراج و صنعت الکتابة کي د (ایران) د کلمې ریښه (ایر Air ) بللې ده. د پالي ژبې د Maharaggo نومي کتاب په (۱-٦-۱۹) برخو خې د Ariyasachccam توصیفي ترکیب د شریف حقیقت په معنی راوړه سوی دئ. (آر) کلمه په پښتو کي د پېغور په معنی هم کارېږي، چي ځیني کسان ئې د عربي (عار) پښتو سوې بڼه بولي. (آر) کلمه په پښتو کي د خیال او نظر په معنی هم ویله کېږي، لکه: پلانی مي په آر نه راځي".(۵-۷، ٦، ۷، ۸، ۹)

استاد عبدالشکور رشاد رحمه الله که له بهرنیو ژبو ځیني ژباړي هم کړي، پر هغو ئې بیا دومره څېړنیز معلومات ورکړي چي له اصلي مطلب څخه د څېړنیزي سریزي، پایڅوړونه د سړي ډېر خوښېږي لکه د(قصه خوانۍ خونړنۍ پېښه) چي خدای بخښلي رشاد حاشیه او څېړنیزه سریزه وربانديي لیکلې ده. نوموړی په یوه پېښه پسې لسګونه کورنۍ مجلې کتلي، له یقین وروسته ئې لیکنه پرې کړې ده. په پای کي ئې یو دوې جملې را اخلم: "له ښه مرغه ټولي مطلوبي ګڼې چي (اتو) ته ئې شمېر رسید، یو په بل پسې راورسېدلې او د افادې د تکمیل له پاره مي څه حاشیې هم پر زیاتي کړې، زه پښتني نړۍ ته د دې ترجمه سوي اثر په وړاندي کولو ځکه خوشاله یم چي ګوندي په دې وسیله سره مي د پښتنو یوه پاکه او پر افتخاره قرباني له هېري ژغورلې وي. عبدالشکور رشاد" (۸-۴).

( فواید فقیرالله، اسماء الحسنی، میا فقیرالله او نور ډېر ګڼ شمېر آثار شته دي چي لوی استاد زموږ د هیواد نامتو قلموال) وربانديي علمي او هر اړخیزي څېړني کړې دي، چي دلته د ټولو راوړل مهال بربښي.

ستا د ښایست ګلونه ډېر دي
ځولۍ مي تنګه زه به کوم بو ټولومه

**نتیجه:**

خدای بخښلي پوهاند استاد عبدالشکور رشاد په حقه سره زموږ د فرهنګي ټولني د نیلي آسمان پر مخ هغه روښانه لمر وو. چي له بده مرغه له ځلېدو پاته سو. پوهاند عبدالشکور رشاد هغه لوړ ادبي شخصیت دئ چي ده په خپلو خوندورو اشعارو، ادبي او څېړنیزو لیکنو او پنځونو زموږ د هیواد فرهنګي او کلتوري نام و نښان لوړ کړی دئ. که رشاد غوندي روښانفکره لوړ آنده، بزرګواره شخصیت په نورو ټولنو کي وای نو اوس به ئې په موزیمونو کي مجسمې وای! هغه تېره دلته ښه لګېږي چي وایي:

خلک له خاورو نه زر جوړ کړي
زه بدقسمته یم سره زر خاوري کومه

نو استاد رشاد د روهي صاحب په وینا هغه لیکوالو ته پاته کېږي چي: موضوع ټاکي، اړتیا احساسوي او د حقیقت د موندلو له پاره په پلټنه پیل کوي. (۹-۳۷)

علامه رشاد د ریسرچ له لرغونو، منځنیو او معاصرو شېوو او مېتودونو کار اخیستی دئ، لکه چي د مأخذونو په

ورکولو او ښکاره کولو کي د علامه حبیبي پر لاره پل ږدي. د بېلګي په ډول د پټي خزانې فرهنګ د لغتونو په څېړنیز کار کي لرغوني دود کاروي (شیخ متي چي خلیلي و – دی له آره لوی ولي و. پټه خزانه ، ۱۳مخ).

دغه شیوه نعمت الله هروي او د خورشید جهان لیکوال، یاقوت حموی، حدود العالم او ډېرو نورو لرغونو لیکنو کي هم کارېدلې ده، رشاد په کلاسیکه او معاصر شېوه مأخذونه ښوولي یعني د کتاب له نامه سره ئې د لیکوال نوم او د کتاب مخ هم په ګوته کړی، خو له دې سره سره ئې د نوي اکاډمیکي څېړني پټي او مأخذونه هم کارولي دي.(لیکوال، د کتاب نوم، کال، ځای، مطبعه او نوري ځانګړني په ګوته کړي).

د څېړني په کار کي د ډېرو بریالیتوبونو تر څنګ دا خبره ډېره مهمه ده چي نوموړی د نړۍ په ژوندیو معتبرو ژبو (انګلیسي، عربي، روسي او پخوانیو مهمو ژبو سانسکریت، پالي، اوستا او...) نورو پوهېده. استاد به په یوه کلمه پسي د نورو او خپلو ژبو لرغوني متون لټول، علمي پلټني به ئې کولې، کتابونه به ئې پاڼه پاڼه لټول. نظرونو ته به ئې مراجعه کوله، یاداښتونه به ئې رالټول، د خپلو تجربو زېرمي او خزانې به ئې کتلې، د روایتونو دنیاګۍ ته به ورغی او د مرکو لاره به ئې خپله کړه. له ډېرو ساده خلکو او ټولنو به نوموړي یاداشتونه اخیستل، خلکو به له ده څخه خپل معلومات بشپړول، خو ده به د راټلونکي له پاره خپل یاداشتونه راټولول.

استاد به په څېړنه کي د هري موضوع، عنوان او کلمې ښه تعریف کاوه، د پدیدو ماهیت به ئې ښووه، د مفاهیمو ستاینه به ئې کوله، مقایسه او پرتلنه به ئې کوله، د نظریو نقد او کره کتنه به ئې کوله، دلیل او اثبات به ئې وړاندي کاوه، د موضوع پوره تحلیل به ئې کاوه، قضاوت ئې کاوه، ژبني، ادبي او فکري خواوو ته به ئې بشپړه توجه کوله. نوموړی هغه پیاوړي قاضي ته ورته وو، چي له شواهدو، څېړني، تفکر او قضاوت وروسته به ئې مثبته نتیجه سړي ته په لاس ورکوله. که په لنډو ټکو کي ووایم، د خدای بخښلی استاد رشاد هر څېړنه او هر څېړنیز اثر یوه کره صنفي لکچر او درس ته پاته کېږي، چي ښکاره ګټه او نتیجه لري. د ده څېړنه سرتاجه او مځکښه ده، چي الله ﷻ دي موږ د ده د قلم په قدر خبر کړي.

د خوشحال قدر که اوس په هیچا نشته
پس له مـــرګه به ئې یاد کا ډېر عـــالم
(۸۱-۱۰)

## مأخذونه:


۱. قرآن کریم، تبارک الذی، نهه ویشتمه سپاره، سورة القلم. ۳۱۰م آیت.
۲. خوشحال خټک، کلیات، ۱۳۸۴ کال، پېښور: قصه خوانی، دانش خپرندویه ټولنه، د تخنیکي څانګي خپرونه.

۳. رشاد عبدالشکور، د پټې خزانې فرهنګ (لومړۍ برخه) ۱۳٦۲ کال، کابل: کابل پوهنتون، د ادبیاتو پوهنځي خپرونه.
۴. رشاد عبدالشکور، د قصه خوانۍ خونړۍ پېښه، ۱۳٦۷ کال، کابل: د سرحدونو چارو وزارت، د نشراتو فرهنګي چارو ریاست.
۵. روهي محمد صدیق د څېړنې لاربښود، ۱۳۸۵کال، کابل: د افغانستان د سیمه ییزو مطالعاتو مرکز خپرونه.
٦. روهي محمد صدیق، د پښتو ادبیاتو تاریخ، (دویم چاپ)، ۱۳۸۴ کال، پېښور، قصه خوانۍ، دانش خپروندویه ټولنه.
۷. فاخر داکتر علی، ابراز عمومی تحقیق،(درییم چاپ) ۱۳۸۴ کال ایران: تهران پوهنتون، نشراتو مرکز خپرونه.
۸. فقهي فضل الرحمن، راهکار های پژوهش علمي، (دویم چاپ) ۱۳۸۷کال، هرات: د هرات د آزادۍ دولتي مطبعې چاپ.
۹. مومند عبدالحمید، کلیات، (دویم چاپ) ۱۳۸۳ کال. پېښور: قصه خوانۍ، دانش خپروندویه ټولنه، د تخنیکي ځانګي چاپ.
۱۰. وردګ جمیله سروري، د اکاډیمېسن عبدالشکور رشاد ژوند او آثار، ۱۳۸۸ کال، کابل: د علومو اکاډیمۍ د نشراتو ریاست.
۱۱. James M. Mccrimmon. Writing with ۲۰۰۳. Illinois university.

* * *

## د خوراک او څښاک آداب

۱. د خوراک په پیل کي که مو بسم الله هېره سي او په منځ کي درته یاده سي نو په لاندي ډول یې ووایاست: (بسم الله اوله و آخره) (ترمذي، النووي).
۲. ډوډۍ باید له خپل مخ او خپل طرف څخه وخورئ، د لوښي له منځ او یا د بل چا له مخ څخه یې مه خورئ (ابو داود، ترمذي).
۳. له ډوډۍ خوړلو وروسته لاس پرېولل او په خوله اوبه رغړول سنت طریقه ده (علیکم بسنتي بحواله ابن ماجه).
۴. تر څو مو توان کېږي، د ظالمو خلکو خواړه مه خورئ. که څه هم خوراک یې درته حلال وي. خو تاسي د زجر او بد ګڼلو له کبله ځان څني وژغورئ (بحرائق، سراجیه).

# د اکاډیمیسن رشاد یو ځیرنیز خصوصیت





سرمحقق عبدالله بختاني خدمتګار

پښتنه مور دي کښېني، افغانه مور دي کښېني، د زمانې مور دي کښېني، بیا دي داسې زوی راوړي، لکه علامه اکاډیمیسن پوهاند عبدالشکور رشاد!

الله پاک دي ئې وبخښي!

هغه عالم وو دانشمند وو محقق وو.

- له ګهوارې څخه تر ګوره پورې، د پوهې او دانش غوښتونکی، شنونکی، ښندونکی او څېړونکی.

ما وې هغه محقق وو. هو! هغه محقق وو.

د ژبې، ادبیاتو او تاریخ په ځانله ځانله څانګو کې ئې تحقیق کاوه هغه د کلمې په پوره معنا، کامل محقق وو، هغه رښتیا هم په تحقیق بوخت وو.

تحقیق، حقیقت ته ځان رسولو او د هغه موندلو ته وائې، دې مرحلې ته د ظاهري علومو خاوندان کشف یا اختراع وایي او د باطني هغه دا شهود او کرامت.

استاد رشاد به په خپلو علمي څېړنيزو ليکنو کې ډېره هڅه کوله چې ځان د موضوع حقیقت ته ورسوي.

عام محققان، په تېره بيا اوس اوس، زموږ زیاتره محققان د يو بل ليکوال يا محقق ليک او وينا ځان ته سند بولي او په هماغه سند خپل تېزس، خپله وينا، خپله ادعا مدعا ثابته ګڼي. مګر علامه رشاد داسي نه وو، هغه کله به چې د خپل راوي يا مأخذ سند تر لاسه کړ، بيا به نو د راوي راوي او د مأخذ مأخذ پسي شو. د شفاهي راوي او د تحريري مأخذ د ليکوال د ثقه توب پسې شو.

د وينا او ليکنې د معقوليت او نه معقوليت پسې شو، همداسي به تر هغو پوري پورته او مخکي تله، څو چې به ئې په کومه خبره زړه اوبه و ځښلې. په دې لاره کې به ئې د راوي او راويانو، د مأخذونو او منابعو، د استدلالونو او استنتاجونو پر اختلافونو او توافقونو او پر کره والي او نيمګړتياوو پرتليزه نقد هم کاوه او خپل نظر ئې هم څرګنداوه.

هغه نقاد محقق او محقق نقاد وو. د نقد او څېړنې يا د څېړنيز نقد او نقادانه څېړنې په بهير کې، هغه يوازې د نورو د ويناوو او ليکنو په مقابل کې سخت دريځ نه وو، بلکي د خپل ځان د ليکنو په باره کې ئې هم سخت ګيري کوله، خپله ليکنه او څېړنه به ئې بيا بيا کتله، سره او کره کوله او بډاينه ئې زياتوله.

د همدغسي کره عمل د تکرار په لړ کې، د هغه ډېر کتابونه لا ناچاپ پراته دي.

په نړۍ کي دغسي محققان ډېر لږ دي او چي دي د دې ډګر قهرماني بالاستحقاق د هغو په برخه شوې ده. د دغسي ښاغلو دوې نمونې امام بخاري رحمه الله د حضرت محمد ﷺ د احاديثو د ټولولو په وخت ډېر زيار ايستلی دئ. داسې هم شوي دي چي کله ناکله د راويانو د لړۍ د يو تن راوي او د هغه د روايت د ثقه، کولو او ځان ته پر هغه د قناعت حاصلولو له پاره، يوه مياشت د پښو مزل کړی دئ. د همدغسي غور او دقت، زيار او زحمت نتيجه دا شوه چي د احاديثو د امامانو پوهانو له خوا "صحيح البخاری" د احاديثو مجموعه "اصح الكتاب بعد كتاب الله" وګڼل شو.

په را وروسته دوران (۱۸۲۸ - ۱۹۱۰ م) کي د روسيې د لوي او مشهور هيومانيست لوی ليکوال، لېو تولستوی کومه ليکنه به چي د هغه د سکرتر په ذريعه ټايپ شوه نو د ټايپ د ناسمو د سمون له پاره به ئې ټايپ شوي پاڼې په خپله وکتلې. مګر دې سره به ئې په متن کي هم ګوتي ووهلې. په الفاظو کي به ئې دومره ادلون بدلون او کمی زياتی راوست چي د مضمون د بيا ټايپولو ضرورت به پېښ شو. ما په خپله په خپلو سترګو په ۱۹۶۴م کال په (ياسنا پليانه) کي د دې ليکوال په کور کي (چي اوس د موزيم بڼه لري) د هغه د داسي ليکنې متن کتلی دئ چي اته ځلي د هغه له خوا کتل شوی او بيا ټايپ شوی دئ تر دې پوري چي وروستي وريانت له لومړني شکل سره ډېر تغير او توپير موندلی دئ.

هو ! کاږیمپسن رشاد هم دغسي وو، د تولستوی په شان، مګر دې توپیر سره چې د یو خوار، وروسته پاته، د دنیا په غمونو او بلاوو ککړ بېوزلي هیواد، دې دانشمند، په خپل ټول ژوند کې نه سکرتر درلود، نه کاتب او نه مبیض (پاک نویس کوونکی) او د همدې خوار هیواد د نورو بېوزلو او بې وسیلو لیکوالو په شان ئې ټوله لانجه پر خپل سر وه. کله ناکله به ورته د کوم زوی یا لور یا شاګرد ډېره لږه محدوده مرسته میسره شوه.

اوس خو د ځمکي تنابونه سره کش شوي دي، د میکرو فلم، فوتوکاپي، او فاکس کار آسان دئ. انټرنټ خو لا پرېږده. په هغه زمانه کي چي انټرنټ او کمپیوټر چا نه پېژانده او نور وسایل هم محدود او ګران وه، علامه رشاد به ویل: که یو څېړندوی په کابل کي څېړنه کوي او ورته د داسي یو مأخذ ضرورت پېښ شي چي هغه مثلاً د ډیلي په کومه کتابخانه کي وي. نو که دی په خپله د ورتګ توان ونه لري لا باید چي هغه علمي مؤسسه چي دی هلته کار کوي دا امکان ورته برابر کړي چي دغه څېړندوی ډیلي ته ولاړ شي او خپل مطلب حل کړي داسي خبري ښايي چا ته لیونتوب، چا ته بې ګټي، چا ته ناشوني او لږتر لږه چا ته لوکسي ښکاره شي. مګر استاد رشاد څېړندویانو ته داسي امکانات غوښتل. خدای دي ئې وبخښي!

آمین یارب العلمین

* * * * *

# د مجلس اداب

۱. تل هڅه کوئ، چي په نېک او غوره مجلس کي کښېنئ (ابو داود – دوهم ټوک).

۲. په مجلس کي چي مو چیري ځای پیدا کړ پر هغه ځای کښېنئ (کتاب الاداب).

۳. که څه هم په مجلس کي د ناستي ځای وي، خو بیا هم که څوک نوی راسي د هغه لپاره له خپل ځای څخه څه خوځېدل غوره کار دئ (کتاب الاداب).

۴. د مجلس د حلقې په مابین باید نه کښېنئ (ابو داود – دوهم ټوک).

۵. غوره دا ده، چي مجلس ښه پراخ او وسیع وي (ابو داود – دوهم ټوک).

۶. په کوم مجلس کي چي د شریعت خلاف او یا ناوړه کار تر سره کېږي، په هغه مجلس کي له ګډون کولو څخه ډډه وکړئ (اداب المعاشرت).

۷. په کوم ځای کي چي خلک ناست وي، هلته ناړي توکل، پزه سوڼ وهل او داسي نور څه کول چي هغه د خلکو د نفرت او کرکي لامل ګرځي ښه کار نه دئ (اداب المعاشرت).

# څو یادونه، یو څو اوښکي



صدیق الله بدر

علامه استاد اکاډیمیسن پوهاند عبدالشکور رشاد په سیمه او نړۍ کې د یو ډېر دقیق او باریکبین لیکوال، فرهنګي او د یو ملي او ټولنیز شخصیت په توګه خپله بشپړه پېژندګلوي درلوده.

علامه رشاد ۷۰ کاله د افغاني فرهنګ د ښېرازۍ او چوپړ په خاطر شپه او ورځ پر ځان یوه کړې وه، کله به په تحقیق بوخت وو، کله په تخلیق، خو ډېر ځله ئې له مطالعې سره مینه ښودله. تر لیکلو، لوستلو ته ډېر لېواله وو او پر ژوري او کره لیکنې سربېره ئې دقیقه مطالعه هم کوله. ما چې کله هم د اړتیا په وخت کې له استاد څخه کوم کتاب د مطالعې لپاره غوښته او یا په خپله استاد د مطالعې لپاره کوم کتاب راکاوه، د لوستلو پر وخت به د کتاب د مهمو ټکو او جملو لاندې په پنسل ایستل سوي کرښې او پر شاوخوا حاشیو ئې کښل شوو یادښتونو سم له واره زما

توجه جلب کړه، چې دا په خپله د استاد د ژوري مطالعې ښه نخښه ګڼلی شو.

تر کومه ځایه، چې ما دغه یادښتونه لوستي، ټول یادښتونه د کتاب د موضوعاتو د لا کره کولو او ښه واضح کولو په نیت کښل سوي وه، که چیرې پر هر کتاب کښل شوي یادښتونه او حاشیې سره راټولې شي، نو یو بشپړه رساله به ترې جوړه شي او په دې توګه به د ډېرو کتابونو تېروتنې او تېر ایستنې په ګوته شي. (دلته دا خبره د یادونې وړ بولم، چې د تېروتنې او تېر ایستنې په نامه علامه صاحب یو چاپ او یو ناچاپ کتابونه لري، خو له کومو حاشیو او یادښتونو، چې یادونه وشوه، په یادو کتابونو کې نه دي راغلي).

د استاد د ژوري او دقیقې لیکوالۍ په اړه زموږ او د سیمې د فرهنګیانو نظر دا دئ، چې استاد هیڅکله هم عادي او سرسري لیکنه نه کوله، هره لیکنه ئې په ټول تلل سوې او ځانته پوخ اساس لري.

زموږ په فرهنګیانو کې خو بیا دا خبره ډېره عامه او مروجه ده چې: استاد که "بسم الله الرحمن الرحیم" لیکي نو د سم او سهي لیکلو په خاطر ئې له قرآن شریف سره پرتله کوي. (د لومړۍ ځل له پاره دا خبره اروانښاد علامه عبدالحی حبیبي کړې وه).

استاد د لیکنې پر وخت مأخذونو او منابعو ته ډېر ارزښت ورکاوه او د هغو په رڼا کې به ئې خپلې تحقیقي چارې پر مخ بېولې. که چیرې د استاد حتی یوه لنډه لیکنه هم راواخلو نو وبه ګورو، چې د یوې لنډې لیکنې په خاطر ئې هم له ګڼ شمېر مأخذونو څخه کار اخیستی او هر مأخذ ئې سر تر پایه لوستلی دئ. په لیکوالۍ کې لنډ، خواږه، واضح او په ټول برابر لیکل د استاد د نثر په زړه پورې ځانګړنې دي. علامه صاحب ډېر اوږده مسایل په ډېرو لنډو خوږو الفاظو او جملو کې رانغاړلي دي. استاد د خپل ذاتي استعداد، غښتلي حافظې او علمي تبحر له امله په فرهنګي کړیو کې د یوې ژوندۍ اکاډیمۍ لقب تر لاسه کړی او په فرهنګي برخو کې د ستونزو د اوارولو مرجع ګڼل کېده. زموږ فرهنګیان، چې به کوم وخت له کومې فرهنګي ستونزې سره مخامخ کېدل، نو سم له واره به ئې د علامه د کور لاره خپله کړه او استاد به هم په خپل وار د مینې او رښتینولۍ له مخې بشپړ او دقیق معلومات ورکول. سرمحقق محمد صدیق روهي د پښتو ادبیاتو تاریخ (معاصره دوره) کې د استاد د پېژندګلوۍ په ترځ کې یو ځای داسې لیکلي دي: "فاضل استاد په اوسني وخت کې د پښتو او فارسي ادب د کلاسیکو متونو د مشکلاتو د حل کولو دپاره مهمه مرجع ګڼل کېږي، استاد رشاد نه یوازې د خپل علمي تبحر له کبله، بلکې د تقوا او د نفس د مناعت په درلودلو سره د پوهانو او روښانفکره قشر په منځ کې خاص محبوبیت ګټلی دی".

علامه رشاد د کندهار د ښار په یوې داسې بډایې کورنۍ کې زوکړی او لوی

شوی وو، چې ټول آن تر نیکونو پورې د
سوداګرۍ او تجارت په چارو بوخت ول او
دا تمه کېده، چې استاد دې هم د هغو لاره
خپله کړي، خو ده د کتاب او پوهې لاره
خپله کړه او د معنی بازار ئې ګرم وساته. د
استاد پلار عبدالغفور خان له سوداګرۍ
سره سره څه ناڅه مطالعه هم درلوده او څه
کتابونه ئې راټول کړي ول، چې له هغو
څخه یو نیم کتاب اوس هم د استاد په بډای
کتابتون کې شته. د پلار له مطالې سره
مینه، زامن په لیک او لوست روږد کړل او
سوداګرۍ ئې چورلټ پر ځای پرېښوده،
چې نن سبا دغه کورنۍ په افغاني ټولنه
کې خپل ځانګړی علمي حیثیت او اعتبار
لري. د همدغه مطالعو، لیک او لوست له
برکته عبدالشکور رشاد شو او رشاد
پوهاند، اکاډیمېسن او علامه شو. استاد
د یو درانه او آرام خوی څښتن وو، د غږېدا
پر وخت وینا او الفاظ ئې ډېر ارام او
شمېرلي ول. د خبرو پر وخت به هر چا
داسې احساس کاوه لکه، چې استاد په
ټولګي کې په تدریس بوخت وي. علامه
رشاد بابا به د یوې موضوع د ښې پوهونې
په خاطر پر اړوندې موضوع داسې هر
اړخیزه رڼا اچوله او دومره ساده غږېده،
چې موضوع به د اورېدونکي له پاره د ښې
مفاهمې او اخستنې وړ وګرځېده. د استاد
له هر مجلس نه، وروسته مې له ډېرو
فرهنګیانو څخه دا خبره پر بیابیا اورېدلې
چې: استاد خو پر اړوندي موضوع داسې
ښه او پوره رڼا واچوله، چې موږ به په
کلونو کلونو مطالعې هم دومره ډېر او هر
اړخیز معلومات نه شوای تر لاسه کولی.
استاد د کابل د خېرخانې مېنې په لومړۍ
برخه کې یو ساده دوه پوړیز کور درلودی،
چې د موقعیت له مخې غره ته نږدې او ډېره
هواداره سیمه وه. کور ئې دوې دروازې
درلودې، چې یوه ئې د کور د غړو او
خپلوانو او بله ئې، چې پاخه سړک ته
مخامخ وه د فرهنګیانو د تګ راتګ له
پاره ځانګړې شوې وه. د پخه سړک خوا
ته پر دروازې د استاد بشپړ نوم لیکل
شوی وو: (اکاډیمېسن پوهاند
عبدالشکور رشاد) ټول کور انه کوټې
درلودې. چې له هغې جملې څخه شپږ
کوټې د استاد کتابونو ته ځانګړې شوې
وې. کله چې به سړی په دروازه ورننوت،
په ښي لاس کې دویم پوړ ته زینه غځېدلې
وه، په دویم پوړ کې ښي لاس ته یو وړوکی
تشناب او مخامخ یوه دروازه وه، چې پر یو
سپین کاغذ د مېلمستون عبارت لیکل
شوی وو، د دروازې له پرانستل کېدو سره
به د هر نوي راغلي مېلمه سترګې په یو
لوی سالون خوږېدې. د سالون د کوچونو
او وړو مېزونو پر سر به د ترموزونو او
پیالو تر څنګ نوي او زړې مجلې پرتې
وې، سالون درې څلور الماری درلودې،
چې مخامخ الماری د عربي ادبیاتو او
تاریخ او نوري ئې د قرآن کریم،
تفسیرونو، احادیثو او فقهي په کتابونو
ښکلې سوې وې. د سالون پر عربي دېوال
د نورو انځورونو او لاس لیکونو "خطي
نسخو" تر څنګ په غټو تورو د شېرشاه
سوري دا وینا چې: "پښتنو قبیلویت

پرېږدئ قومیت جوړ کړئ" کښل شوي وه، چې له ناستې سره سم د هر چا سترګي پرې خوږېدې. د سالون له دروازې سره نږدې کېڼې خوا ته یوه وړه دروازه وه، چې د استاد د فرهنګي کار او مطالعې پر خونه خلاصېده. په دې خونه کې که څه هم ډېره وړه ښکارېده، څو غټې او وړې الماری ځای سوي وې. دروازې ته نږدې یوه فلزي روکداره الماری اېښودل شوې او پرې لیکل شوي وو: "خوشال فرهنګ" چې یوازې همدا د خوشال فرهنګ اووه ټوکه لاس کښلي کتابونه پکښې خوندي شوي وو. د کوټې چارچاپېره کې واړه واړه مېزونه اېښودل شوي وو، چې د دم شیبې د استفادې وړ زاړه او نوي کتابونه په منظم ډول پرې ایښي وو. په دې کوټه کې لغوي او تاریخي کتابونه ډېر وو. د کوټې په نسبتاً منځنۍ برخه کې یو وړوکی خو ډېر ټینګ فلزي مېز اېښودل شوی وو، چې د هغه پر سر څو غټ او واړه ذره بینونه، یوه مشوانۍ او څو لیکانۍ تر سترګو کېدل. دوې نورې کوټې، چې له سالون څخه ورته لار پرانستل شوې له ادبي، تاریخي، جغرافیایي، فلسفي، علمي، دیني، سیاسي او طبي کتابونو څخه ډکې وې. د امریکا تر برید وروسته علامه صاحب د مېلمنو په کوټه کې د یوه وړوکي مېز پر سر د امریکایي بمونو ځیني پارچې کوټه کړې وې او د هغه پر سر ئې (د جورج ډبلیو بش ډالۍ) لوحه لګولې وه، چې کوټې ته په ورننوتو سره د هر چا نظر پرې لګېده. د لوحې ښي خوا ته یو کاریکاتور هم پر دېوال سرېښ شوی وو، چې یو امریکایي ولاړ دئ، په یوه لاس خوار افغان ته ډوډۍ ورکوي او په بل لاس ئې د ټوپک برچه د هغه په خېټه ورمنډلې ده.

استاد د یو حساس زړه څښتن وو، غم او خپګان پرې ډېر اغېز ښنده، ټولنیزو اندېښنو خو ئې بیا وار له واره داسي ځوراوه، چې روغتیایي حالت به ئې ورسره ګډوډ شو. استاد د افغانستان د غمیزې له پیل څخه له یو داسي روغتیایي رنځ سره لاس او ګرېوان وو او شپه او ورځ د وطن او خلکو غم ځوراوه. د ژوند په وروستیو لسو کلونو کې ئې دې غم او خپګان پوره زور واخیست او هره شېبه به ئې د حالاتو څار کاوه او د هرې پېښې په پېښېدو سره به ئې د افغانانو پر بې اتفاقۍ افسوس کاوه. ډېر ځله خو به ئې له دې غمه سترګي راډکې هم شوې. په افغانستان کې د امریکا او متحدینو له خوا د طالبانو د نظام د نسکورولو د برید په ورځو شپو کې دومره حساس شو او وځورېد، چې د ۱۳۸۱ لمریز کال د جدي میاشتې په یوویشتم مازیګر د خپل کور د دویم پوړ له زینو راوښویېد، سر ئې ټپي شو او ډېره وینه ئې ضایع کړه. ژر تر ژره د علومو اکاډمۍ روغتون ته ولېږدول شو او یوه نیمه اوونۍ هلته بستر پاته شو. د یادوني وړ بولم، چې د بستر په موده کې هره ورځ پر افغان فرهنګیانو او ژورنالستانو سربېره د ایټالیې، جاپان، ناروې او د فرانسې ژورنالستان د استاد لیدو ته راتلل. دې پېښې د استاد پر روغتیایي

حالت ډېر اغېزوښنده او په څو میاشتو کې
یو یا دوه ورځې به په هماغه روغتون کې
بستر سو. له زینو تر راښویېدو وروسته د
معالجو ډاکټرانو په لارښوونه د کورنۍ د
غړو له خوا ئې د مېلمنو د کوټې پر کېڼ
دېوال، پر یوه پاڼه، چې مېلمنو ته مخامخ
راځړېدلې وه، لیکل شوي وو: "د استاد د
صحت د نه ښه والي له امله او د ډاکټرانو
له هدایت سره سم ستاسو درنو او محترمو
مېلمنو څخه دا هیله کېږي، چې له استاد
سره ډېر مجلس ونه کړئ". فرهنګیانو او
مېلمنو به ډېره هڅه کوله، چې د استاد تر
لیدو وروسته بېرته وخوځېږي، خو استاد
به هڅوي راوګرځول او ورته ویل به ئې:
"تر اوسه زه درته رغېدم، اوس ستاسي وار
دئ. تاسي راته ورغږېږئ". که څه هم
فرهنګیانو او مېلمنو به هڅه کوله، چې
استاد ډېر ونه غږېږي، خو د خبرو په بهیر
کې به داسي موضوعات رامنځته شول،
چې استاد باید پرې خبري کړي وای. ټولو
هڅه کوله، چې د استاد په مخکي د حالاتو
په اړه له روانو منفي پېښو او جریانونو
څخه څه ونه وایي، خو استاد به ویل، چې د
حالاتو په اړه د منفي پېښو په برخه کي په
تیاره کي ئې پرېښږدو او څه، چې پېښ
شوي ورته ووایو. یو ځل چې ما ورته د
حالاتو د مثبتو پېښو په اړه خبري کولې.
راته ئې وویل: "بدره! زه پوهېږم، چې زما
روغتیا ته توجه کوې، خو دا ظلم مه راسره
کوه. چې پر خپل ملت له راغلو ناخوالو او
بدلونونو بې خبره پاته سم، که زه په دې
شیانو خبر نه سم او پر خپل ملت اوښکې
تویې نه کړم، زړه مي کرار نه مني".

علامه رشاد له خپل وطن او ولس
سره د زړه له تله مینه درلوده، روانو غمیزو
سخت په زړه ټپي کړی وو. او همېشه د
وطن او ولس په بده ورځ ئې د غم او
خواشینۍ اوښکي تویولې او د هغې
ورځې په ارمان وو، چې وطن اباد او اولس
ئې هوسا واوسي، اولس ئې هر څه ولري
او د هیڅ شي کمی او نشت؛ محسوس نه
کړي. استاد د هغې ورځې ارمان په زړه کې
روزه، چې په بهر کي مېشت ټول پانګوال،
انجینران او ډاکټران له خپلو ټولو
امکاناتو سره وطن ته راشي او د خپل وطن
او اولس خدمت دي وکړي

د استاد د دغې ژوري او اورنۍ
مینې انځور د هغه د (مرور) د ډاکټر خالد
رشاد مېرمن، چې د جاپان اوسېدونکې
ده، په یوه لیک کي ښه رانغښتل شوی
دی.

لیک:

"څه موده وړاندي زما خواښې او
خسر له افغانستان څخه جاپان ته راغلي
وو، د خالد د دې ټولو هڅو او زیارونو په
وړاندي ما د خپل خسر ورین تندی ونه
لېده. دا ځکه چې که خالد دا ټول زیار او
زحمت په خپله خاوره، مېنه او ټاټوبي کي
کښلی وای، د خپلو افغانانو ډېر درد به
پرې دوا شوای وای".

تقریباً بشپړه اوونۍ به پر سالون د
فرهنګیانو بهیر رامات وو، کله خو به بیا
دومره ګڼه ګوڼه راجوړه شوه، چې ځینو ته
به د ناستي ځای نه وو پاته، هغه فرهنګیان

او د استاد ارادتمندان، چي یوه پښه تر نورو له وخته راغلي وو، په نه زړه له استاد سره مخه ښه کوله او نویو مېلمنو ته ئې ځایونه خوشي کول. استاد د مېلمنو په تګ راتګ زیات خوشالېده، خو هغه مېلمنو ته به ډېر خوشاله وو، چي نوي چاپ شوي کتابونه به ئې مخي ته کېښېښودل. د کتابونو په لیدو به استاد دومره خوښ، خوشحاله او تر اغېز لاندي به راغي، چي حتی کله کله به د مننې الفاظ ورځني هېر شول.

د ځوانو فرهنګیانو تګ راتګ به ئې ډېر په زړه کېښېنوست او د ځوانانو په منځ کي ئې د ډېري خوښۍ احساس کاوه. کله چي کوم نوی زلمی فرهنګي به ورته وروپېژندل شو، د استاد د احساساتو او ډېري خوشحالۍ د حد ټاکل ډېر ګران وو. استاد به د نویو شاعرانو او لیکوالو په لیدو سم له واره هغه په دې الفاظو ولمانځه: "زموږ د بخت ستوري په راختو دئ، موږ ډېر بختور یو، د ستر او لایزاله ذات مهربانۍ ده، شکر شکر، خدایه د احساس خاوندان نور هم راپکښې ډېر کړې".

ځوان فرهنګیان هم د ډېري مینې له کبله ډېر ژر ژر د استاد پوښتني ته راتلل او د استاد لیدل ئې پر ځان واجب ګڼل. د علامه صاحب له ډېرو ارادتمندانو او فرهنګیانو نه مي دا اورېدلي، چي که په هفته کي یو ځل استاد ونه ګورو طاقت مو نه راځي.

... د مینې دا بهیر همداسي په مخه روان وو، خو د مرګ قاصد د ۱۳۸۵ د لیندۍ په یوولسمه د دغه بهیر په مخه خنډ وګرځېد او علامه رشاد د تل له پاره جسماً له موږ نه بېل او له ابدیت سره یوځای شو.

"د یادوني وړ بولم، چي زه به د هري جمعې او هري دوشنبې په ورځ د علامه صاحب زیارت ته تلم او له سهاره تر مازیګره به، تر هغې پوري، چي د هغې درنې ستې ارداتمندان راتلل او بېرته تلل، هلته وم او ځان راته د علامه صاحب د کورنۍ یو غړی ښکارېده. لکه څنګه چي مخکي هم اشاره ورته وشوه، استاد د خپل ژوند په درې وروستیو کلونو کي له ښه روغتیایي وضعیت نه برخمن نه وو، خو سره له دې هم زما په غوښتنه ئې د کلید اونیزۍ له پاره مرکو ته حاضر شو، چي د هغو مرکو کتاب د سیمو تاریخي جغرافیې په نامه د علامه صاحب تر مړیني درې کاله وروسته د میوند کلتوري ټولنې چاپ کړ".

اروا دي ښاده وي

*****

## د ملاقات اداب

* د ملاقات (لیدنې) په پیل کي لومړی سلام واچوئ (کتاب الاداب).

* له کوم نابلده سړي سره چي ملاقات کوئ نو تر سلام کولو وروسته لومړی باید ځان یو بل ته وروپېژنئ (اداب المعاشرت).

* کله چي له چا سره مخ کېږئ نو په غوړېدلي تندي او خندېدونکې څېره باید وسره مخ سئ، تر څو هغه ستاسو په ملاقات خوښ سي (ترمذي).

څېړنیار: عبدالرحمان حبیب زوی

# رشاد د هنر ترجمان

ارواښاد عبدالشکور رشاد د خپل ژوند ډېره برخه د پښتو ادب د بډاینې او علمي لوړاوي له پاره په کار اچولې وه او په دې برخه کې ئې ډېر پاخه، درانه، علمي او هنري پنځوني کړي، چې زموږ د راتلونکي نسلونو له پاره د یوه ښه مأخذ په توګه ترې ښه ګټه اخیستل کېدای شي.

ارواښاد پوهاند رشاد د ادبیاتو په څېړنیزه او پنځیزه (تخلیقي) برخو کې خورا ارزښتمن آثار کښلي دي او د دې تر څنګ ئې پر هغې برخې هم کار کړی، کوم ته چې پښتو ادب په پرون اونن کې سخته اړتیا درلودله ده او دا اړتیا په پښتو ادب کې ژباړه ده.

رشاد صاحب دې برخې ته د یوه پاخه هنروال په څېر متوجه وو او د ډېرې هنري وړتیا او ځېرکتیا سره ئې داسې هنري ژباړې کړې، چې سړی فکر کوي دا د ده خپله لیکنه ده او یا هم د ده ژباړل شوی اثر د افغاني ټولنې محصول روایات دي، خو داسې نه ده، بلکې اصلي خبره دا ده، چې رشاد بابا تل د ژباړې په انتخاب کې ډېر ځواکمن استعداد په کار اچوه او هغه څه ئې نه ژباړل چې د ده له ټولنې (افغاني) سره اړخ نه لګوي او یا هم د ده د ټولنې له پاره کوم ځانګړی پیغام ونه لري، که څه هم پښتو غوندې ترې ژبې او ادب ته هره ادبي څېړنه او پنځونه د قدر وړ چاره ده، خو بیا په داسې حالت کې ژبه د څرنګوالي په لور نه بلکې د څومره والي په لور درومي او بله دا چې هر نه لیکوال ته د شهرت او نوم ایستنې چاپېریال برابرېږي، چې بیا به زموږ ژبه او ادب په علمي او هنري لحاظ له نورو ژبو سره د سیالۍ جوګه نه وي، نو ځکه اکاډیمېسن رشاد دغې خلا ته ځېر وو او د ژباړې په انتخاب کې له ډېر قوي فکري تومني څخه برخمن وو، د دې وېناوو د ثبات له پاره غواړم د رشاد صاحب په یوه ژباړل شوې داستان لنډې خبرې وکړم:

(بې لاسو ښځه) د ارواښاد رشاد د یوې ژباړې نوم دئ، چې په په ۱۳۸۵ ل

کال کي د یوې ورې رسالې په بڼه د نارنج
خپرندويي ټولني له خوا په کندهار کي
خپور شوی دئ.

دا رساله یو روسي ولسي داستان
دئ، چي رشاد صاحب پښتو کړې ده، پر
دې رسالې اروابناد عبدالمجید بابي یوه
لنډه تبصره کښلې، چي په یوه برخه کي
وايي: "دا ډول مات ګامونه، د هغو څخه
زېږنده ناوړې پېښې زموږ په ولس کي هم
په تېرو مهالونو او څه ناڅه اوس هم په
نژدې یا لیرې سیمو کي تر سره کېږي.

د دې له پاره چي د دې ډول ناخوالو
ریښو ته مو د تدبیر په تبر سره ګذار
ورکړی وي او بیا مو د ټولني پاملرنه ورته
اړولې وي ور ده، چي د لوست په توګه
خلکو ته وړاندي سي، څو د بیاکړني څخه
ئې ځانونه وساتل سي".

نوموړي اثر کټ مټ دافغاني ټولني
له واقعیتونو سره اړخ لګوي او هغه
ناخوالي پکښې انځور سوي، چي زموږ
ټولنه ورسره تل لاس او ګرېوان ده. همدا
ډول په دې داستان کي کورنۍ جوړښت او
په کور کي د نارینه وو له خوا د لنډ فکرو
ښځو په خبرو غولېدنه او همدا راز بیا
برعکس د یوې سپېڅلې او صبرناکي
ښځي رولونو ته نغوته شوې او دریم دا
چي په یوه کورنۍ کي باور له لاسه ورکول
څومره بدي ناخوالي له ځانه سره لري، دا
درې واړه شیان زموږ په افغاني ټولنه کي
شته او دي. نوځکه ژباړن د ترجمې په
انتخاب کي ډېر ارزښتمنه پرېوځي.

داستان داسي پیلېږي، په یوه غریبه
او یتیمه کورنۍ کي مور، زوی او خور
سره ډېر خوږ ژوند تېروي او د وخت په
تېرېدو سره مور ئې په حق رسېږي، خو
مخکي تر مړیني زوی ته وصیت کوي، چي
خورکۍ به دي سمه ساتې او هېڅکله به
ورته په قهر کېږې نه، داسي درناوی به ئې
کوې لکه چي زما دي کاوه، پس له دې نه
ستا مور ده.

خور او ورور په ډېره مینه ژوند
تېروي او یوه ورځ خور ئې د خپل خواږه
ورور د نېکمرغۍ او کور آبادولو له پاره
ورور ته د واده په تکل کېږي. بلآخره خپل
ورور ته واده وکړي او پردۍ ناوې کور ته
راولي، ناوې چي د خور او ورور دا بې
سرحده مینه ګوري، نو رخه ئې ورسره پیدا
شي، په داسي حال کي د کور ټول کارونه
هم خور کوي او له ورېنداري سره د یوې
ښې انساني په توګه مینه کوي او دا ځکه
چي ورور ئې پرې ډېر ګران وي، خو
ورېنداره ئې ډېري لاري چاري پلټي څو
خور د ورور په وړاندي بده او ناوړه ښځه
وپېژني او هر کله چي خاوند ته درواغ
وایي، خو ځای نه نیسي او خاوند ئې په
هېڅ باور نه کوي ځکه خور ئې ورته
مالومه وه، چي داسي نجلۍ نه ده. یوه
وخت ورور له کور څخه په اوږده سفر وزي
او په دې وخت کي مېرمن ئې هم بلاربه
وي خور ته وايي، چي خورکۍ زما پر
راتلونکي ماشوم به خیال ساتئ او خور ئې
همداسي کوي د ماشوم پالنه او روزنه ډېر
په لېوالتیا سره کوي، په دې تمه چي یوه
ورځ ئې ورور له سفره راشي نو دا پرې د ده

د نوي زوی زیری کوي او ورور به د خور له ښې پالنې څخه ډېر خوښ وي، خو داسي نه کېږي د ورور په راتګ سره د خوږې او سکه خور د ژوند بدي ورځې پیلېږي، چې تر پایه پوري کیسه د هیلو او ناهیلو په ګرداب کي له بخت سره په جنګ وي.

یوه شپه چې ورېنداره ئې له خپل ماشوم څخه ناخبره په بېغمه خوب بیده وي، نو خپل ماشوم تر سینې لاندي کړي، ماشوم مړ شي، بالاخره ورېنداري ته د خور او ورور د بېلولو پلمه په لاس ورسي. کله چې ورور کور ته راستون شي، ښځه ئې په مکارو ساندو پیل وکړي او ورور ته وایي، چې ما نه ویل دا ستا خور نه بلکي ستا دښمنه ده، وګوره ستا ایکي یوازي زوی ئې درته مړ کړ. ورور چې لا ئې د سفر ستړی دمه سوی نه وي په شیطاني احساساتو کي ځان بایلي او د ښځې پخواني درواغ ئې د خور په اړه په یقین بدل شي، بالاخره خور ته پاکي جامې ورواغوندي او یوه ځنګل ته ئې بوزي. خور ډېره هڅه کوي، چې خپل ورور پوه کړي چې زوی ئې دې نه دئ وژلی، خو ورور ئې د رحمان پر ځای د شیطان سره ملګری وي او د خور خبرو ته هیڅ پام نه کوي، په پایله د خپلې خور سپین مړوندونه په کنده کښېږدي او په تبرګي باندي ئې دواړه مړوندونه غوڅ کړي او خپله خوږه او په وینو لړلې خور په ځنګله کي یوازي پرېږدي.

له دې وروسته د خور بدي ورځې پېلېږي خو د هري بدي څخه وروسته یوه نېکمرغي هم ورنصیب کېږي. بالاخره پر همدې نجلۍ د یوه پاچا زوی مېنېږي. چې رشاد بابا ئې داسي ژباړي: "د مظلومي پېغلي نصیب د ښو وو، د دې پرې سوو خپرو د ځوان په زړه کي د دې مینه لړه نه بلکي په ډېر تلوار پلار ته و رغي، تر سلام وروسته ئې ورته وویل: ابه ګه! زیری مي راوړی دی، زیری! زموږ باغ دان په باغ کي یوه داسي پېغله پیدا کړې، چې زما په خیال تر هغې به ښایسته نه وي، د دې ښکلا زما زړه وړی دئ، زه غواړم ورسره واده وکړم. ابکه ستا خوښه ده".

موږ دلته د کیسې پر منځپانګه نه غږېږو، ځکه دا کیسه بل چا لیکلې ده، موږ ئې یوازي پر ژباړې او ژباړن باندي خبري کوو، خو بیا هم داستان ډېر ښه پلاټ، کلیف هینګر، د کرکټرونو تناسب، تلوسه او ښه تخیل هم لري. ژباړن داسي ژباړلی، چې داسي نه برېښي دا ژباړه وي بلکي داسي ښکاري، چې دا کیسه د افغاني ټولني تولید او د ژباړن خپله پنځونه ده او دا دوه لاسونده لري:

۱- یو دا چې ژباړن د ژباړې په فن کي بشپړ مهارت درلود. تحت الفظي او یا تش په نامه ژباړه ئې نه ده کړې، بلکي کیسه ئې خپل محیط ته په کتو سره د خپلې ژبي داخلي چوکاټ کي اوډلې ده، په ډېر مهارت او په ډېره ساده ژبه ئې دا داستان ژباړلی او خپل عواطف ئې پکښې ځای کړي دي.

۲- بل لاسوند دا دئ، چې د داستان

د موضوع په انتخاب کي ډېر غور شوی او دا موضوع زموږ له ټولنیز ژوند سره ډېر اړخ لګوي. ځکه نو په لوستونکي او اورېدونکي ښه لګېږي، ځکه چي ورته واقعیتونه د ده په ټولنه کي شته.

که چیري رشاد صاحب د سیمي او نړۍ د فحشاخانو کیسي، د نایټ کلبونو او یو لړ نوري پولیسي، سیکسي کیسي ژباړلې نو پر لوستونکو او اورېدونکو به دومره خوږ نه لګېده، له بده مرغه چي په هیواد کي داسي ډېر تش په نامه لیکوال شته، چي یوازي د خپل نوم په لیکلو خوښي احساسوي، پرته له دې څخه چي خپل ژباړل شوي له لاري ټولني ته ښې ګټه او پیغام په پام کي ونیسي او ملامت هم نه دي ځکه چي پرته له پښتو پارسي په بله ژبه پوهېږي هم نه او بیا چي ژباړه کوي نو د لومړني ژباړن نوم هېروي او د دوهم لاس کتاب پر شا به خپل نوم لیکي چي ګواکي ده ښاغلي له یوه بهرنۍ ژبي څخه دا کتاب ژباړلی او په عین حال کي چي ده به د دوهم ځل له پاره له ایراني کتاب څخه ژباړه کړې وي، تاسي خپله فکر وکړئ، دوهم لاس ژباړه هغه هم له ایراني ژبي چي سانسور به پکښې هرومرو وي څه لاس ته راوړنه ولري. دغه ډول تش په نامه ژباړي نه یوازي چي ټولني ته ګټوري نه دي بلکي ټولنه د انحراف لوری ته بیایي او په پښتو ادب کي د ځوانانو د علمي تولید او ژباړي د فن په پرمختګ کي ستر خنډ دئ، خو زموږ قدرمن استاد اکاډیمیسن عبدالشکور رشاد دې ټکو ته سخت متوجه وو، د دغسي مبتذلو ژباړو پر ځای ئې دا ډول ژباړي کړي.

په څېړنه او یا ادبي پنځونه او ژباړه کي تر ټولو مهم ټکی د موضوع ټاکنه ده، داسي نه چي په لاره او کوڅه کي هر شی چي مخي ته درغي وئې ژباړه. دا ډول ژباړنان هغو ښوروا خوړونکو ته ورته دي، چي پرته له دې چي د ښوروا خوند او جوړښت وګوري، چي په ښوروا کي څومره او څنګه غوښه او ترکاري پرته ده، آیا بدن ته به انرژي ورکړي، بلکي یوازي نوم ته ئې خوشاله وي چي ښوروا خوړه.

دې ډول ژباړو ته هنر نه ویل کېږي، بلکي هنر هر هغه څه ته ویل کېږي، چي ټولني ته ښېګڼې، مثبت پیغام، نوښت او لوړ فکري او تخیلي قوت ولري دا هنر دئ. په یوه کتاب کي د هنر پېژندنه داسي راغلې ده: هر هغه اثر، چي اخلاقي او ټولنیزو ارزښتونو په مخېبلګه (چوکاټ) کي د ښکلا پېژندني او د ښکلا د بنسټونو د وړاندي کولو هڅه پکښې وي هنر ګڼل کېږي[1] دلته هم موږ وینو، چي د ټولني ارزښتونه ته ښه څرګنده اشاره شوې او رشاد بابا هم په خپله ژباړه کي دا کار کړی دئ.

په یوه بل ځای کي هنر داسي معرفي شوی: هغه اثر هنري ګڼل کېږي، چي د لوستونکي او اورېدونکي روح او عواطف ځانته راکښېکاږي[2]. رشاد صاحب همدا ډول هنر کارولی دئ، لکه چي موږ ئې د ده په (بې لاسو ښځه) او ځینو نورو ژباړو کي (سوالګره نجلۍ د

ټاګور له آثارو، د ميني نغمې د سروجن نايډو له آثارو، ظالم د سيد جمال الدين له آثارو څخه، ظالم رواج د ټاګور له آثارو، د ظالم باغ د اسکروفيلډ له آثارو او وريځ د شيلي له آثارو څخه)[٣].

په دغو ټولو ژباړو کي د پورتني تعريف سمون وينو. چي لوستونکي او اورېدونکي پر ځان راماتوي او د دوی عواطف له ځانه سره ملګري کوي. د يادوني وړ ده، چي ژباړه په خپل ذات کي فن دئ هنر نه دئ، خو رشاد صاحب داسي ژباړي کړي، چي د فن له بريده راوتي دي او د هنر په بې سرحده درياب کي لاهو شوي دي.

د رشاد صاحب په ژباړو کي د قوت بل لامل د نوموړي بلدتيا له نورو بهرنيو ژبو سره ده، رشاد بابا هيڅکله هڅه نه ده کړې خو د اوسني ټمبل دود په څېر له ايراني ژبو څخه آثار وژباړي، ځکه دی په دې پوهېده، چي افغانان په ايراني پوهېږي او پارسي ژبه زموږ په هيواد کي مروجه ژبه ده او هر افغان مسئول دئ، څو زده ئې کړي نو د هنري آثارو ژباړو ته ئې اړتيا نه ليدله کېږي، بلکي نور په ځانګړي توګه ځلمکي ليکوال دي د رشاد بابا په څېر ځان ستړی کړي او له نورو سيمه ييزو او نړيوالو ژبو څخه دي پښتو ته آثار وژباړي نه له سانسور شويو ايراني کتابونو څخه.

لوی خدای دي د رشاد بابا اروا ښاده لري او د ده د کارونو او ليکنو اغېز دي پر نورو ژباړونکو پريوزي.


سرچيني:

١. سعديان، عبدلحسين: دايرة المعارف ادبي، چاپخانه بهرام، ١٣٨٠، ايران.
٢. انوري، حسن: فرهنګ سخن، ١٣٨١، تهران، ٨٤٣٠ - ٨٤٢٩ مخونه.
٣. رشاد، عبدالشکور: ادبي ثرونه، ١٣٨٤ل، علامه رشاد اکاډيمي، د پوهني مطبعه، کندهار، ٤٢ - ٥٨ مخونه.


***

## د خوراک او څښاک اداب

١. تر ډوډی خوړلو مخکي لاس پرېمنځل سنت طريقه ده (ترمذي -دوهم ټوک، هنديه).
٢. په ډوډی خوړلو کي دا نيت وکړئ، چي زه ډوډی د دې لپاره خورم چي د الله ﷻ د امر او حکم پر ځای کولو لپاره توان او قوت حاصل کړم (عليکم بسنتي).
٣. خوراک، څښاک، چا ته ډوډی او يا اوبه ورکول او يا له بل چا څخه ډوډی او يا بل څه اخيستل ټول بايد په ښي لاس تر سره سي (موطاء امام محمد رحمه الله عليه. عليکم بسنتي).

# داروانښاد استاد علامه رشاد د يو ځوابيه ليک سپړنه



سرمحقق عبدالواجد واجد

دا ځوابيه ليک د اروانښاد استاد رشاد له خوا د هغه ليک په ځواب کي دئ چي خپل ګران زوی ډاکټر خالد ته ئې د شعر په ژبه ليکلی دئ.

څومره چي په ژوندانه کي د اولاد له پاره مور او پلار خواږه وي او تل د مور او پلار د سيوري لاندي خپل ځان خوښ او خوشحال بولي، په هماغه اندازه مور او پلار هم خپل اولادونه د زړه ټوټه ګڼي او تل د خپل اولاد په ښوونه او روزنه کي زيار باسي او کوښښ کوي چي د اولاد راتلونکي ژوند ئې له ځانه ښه تر او بهتر وي. هغه مهال چي زموږ په ګران هيواد افغانستان کي د ظالمانه جګړو لړۍ ورځ په ورځ مخ پر زياتېدو وه، اصلي علت ئې د افغانانو بې اتفاقي او د قدرت لاس ته راوړل وو، د دغو بې اتفاقيو له امله په ټول افغانستان خصوصاً کابل کي د يوې پاچهۍ پر ځای اوو پاچهيو حکومت کاوه، چي ښکلی کابل ئې پر اوو برخو وېشلی او له هري خوا د سپکو او درنو وسلو د ګوليو باران وو، نو آوازه او انګازه

ئې په ټوله نړۍ کې خپره وه او هغه هیوادوال چې له هیواده ئې بهر ژوند کاوه هم دخپلو خپلوانو او مور و پلار له درده بې خبره نه وه، نو د همدغه احساس له مخې ډاکټر خالد هم ګران او محترم پلار رشاد صاحب ته له جاپان څخه لیک رالېږي او ورته لیکي چې پلاره!

په هغه اور کې چې له زیاتې مودې راهیسې زموږ په هیواد خصوصاً کابل کې بل دئ، وچ او لانده پکښې یو شان سوزي هلته څه کوې؟ جاپان ته راځه او دلته به په آرامۍ ژوند تېروې. استاد ورته وایې: مرګ په هر ځای کې د هر چا ملګری دئ او په هر ځای کې چې د چا وخت پوره سو و سې ته رسېږي، نو ښه به دا وي چې په دې خپل هیواد کې ومرم، هڅونه خو به مې آرام وي.

استاد په خپله شاعرانه ژبه او پلرنۍ مینه خپل سلامونه داسې استازي ته چې د هغه استازي سره ښکلې وړمه ملګرې ده سپاري، او دا سلامونه په ډېره مینه، ښکلو او هنري الفاظو کې خپل زوی ته استوي او وایې:

ما دي سلامونه خپل سپارلي وسبا ته
زغرې دي پر ګلو څو سبا رسېږي تا ته

مه ننله سوړ باد چې ته ورباندې خوړ سې
مه درڅه تور باد چې پر تا دروند سې، ستا و خوا ته

ته دې یې، ښادې دې وې، برې دې وي روغتیا هم
تل دې وي آمین د پرښتو دغې دعا ته

که استاد رشاد ته خپل بچیان ګران وو، نو همدومره ورباندې هیواد، هیوادوال او د دې غیرتي خاورې بچیان هم ګران وو، ځکه چې د هیواد او د دې هیواد د محرومو او مظلومو خلکو په خاطر ئې ټولې ستونزې او مشکلات په خپل ځان منلي وو، نو د خپل زوی د دې خبرې چې ما ته حریفان سپکې او سپورې وایې په ځواب کې داسې لیکي:

تا و راته کښېلي چې وړاندې حریفانو
کینې کېږي. بدې وراني، سپکې سپورې ما ته

ته خو را خبر یې، که ما ځان لره غوښتلای
او س به دا خوارې او دربدري نه وه راپاته

نه به مې پر مخ باندې پوست وچ وله نښتیه
نه به مې د پور تر پېټې لاندې وه ملا ماته

نه به وم محروم د دې دنیا له عشرتونو
نه به مې وه خونه د روزي هسې میراته

نه به ومه اړ حق الزحمې ته د څو لیکلو
نه به مې د کور سترګې ختلې وې تنخا ته

د هر څه زمینه مساعده او برابره وه، د لویو لویو پوستونو او چوکیو وړاندیزونه ورته کېدل، خو استاد د خوشحال بابا د دې بیت سره سم چې وائې:

آزادي تر پادشاهیه لا تېرې کا
چې د بل تر حکم لاندې شي زندان شي

نه غوښتل چې د بل تر لاس لاندې ژوند وکړي، نو ځکه وائې چې: پورتني وړاندیزونه مې منلي وای نو:

نه به داتنګسې، دا بدي ورځي سترې ژوندواى
نــه بــه بــدبيني د زوروروواى پــرې زياتــه

نـــه د حرمـــان او د زنـــدان وو تهديدونـــه
نــه بــه لوېــده پــه هــر قــدم د بــلا څــا تــه

ما غوښته زما له زياره نور ماړه، هوسا سي
ځکه مې ورکړې وخپل ځان لورې، ستړياته

استاد په خپل ځوابيه ليک کې د دې هيــواد د بېچــاره وو او مظلومــو خلکــو خصوصاً د پښتنو د وېښتابه په باب خپل اصلي هدف واضح کړى دي او وايي:

ما ژړل پر حال د دې بې دردو بيدو خلـــکو
ماغوښته چې بوزم پښتانه د وېښتوب خواته
نوره ګناه نه لرمه خـــداى په زوږ خــبر دئ
ما غوښته چې وباسمه قام له دې ظلـــماته

استاد د استادۍ او روښانفکرۍ تر څنګ د خوشحال بابا په څېر د غيرت يوه ډېوه وه او په خپل ژوندانه کې ئې بې له خدايه هيچا ته سر نه دئ ټيټ کړى، د مال او منال په مينه ئې خپله آبرو نه خرابوله، د يو ملي او ديني غرور څښتن وو، نو ځکه وايي:

نـه دې خاندي څوک زما پر دغو بې وسيو
زه نــه يم جوړ تګى برګى، بدو او غلا تــه

مـا كــه تويــولاى خپــل آبــرو د مــال پــه مينــه
زه بــه رســېدلى واى وختــى د جــاه لــيلا تــه

اوس بــه برخــوردار وم د ښــه ژونــد لــه نعمتونــو
مــا كــه كــړ ولاى د غيــرت غــاړه و چــا تــه

استاد د بېوزلو په بې وزلۍ د زړه له درده ژړېږي، خو ځيني کسان د بېوزلو پر بېوزلۍ خاندي، نو په دغسې قضاوت افسوس کوي او په دې هکله د استاد پريکړه دا ده:

زه وايـم مـا پر بـېږدئ چـې ژړېـږم پـر بېوزلـو
دوى لـه خندا شـنه سـي چـې وګـوري ژړا تـه

داچـې قـضاوت وي، د دې ملـک د دانــسته وو
وايـم بـه د ورځـې سـل لاحولـه، زر هيهاتـه

دا وه د ارواښـاد استاد اكاډيمېـسن پوهاند عبدالشكور رشاد هغـه ځوابيـه شعر د يو څو بېتونو لنډه سپړنه چې خپل زوى ډاکټر خالد ته ئې په خپلو الفاظو کې وراستولى وو، زما په نظر كه د ارواښاد استاد پر نظم او نثر خبري وسي، نو ستر كتابونه به پرې وليكل سي. په پاې کې د مشت نمونۀ خروار په توګه دغه لنډه ګنډه مقاله د استاد پاک روح ته ډالۍ کوم.

ارواح دې ئې ښاده وي

***

## د خوراک او څښاک آداب

١. په خوراک کي چي څومره لاسونه يو ځاى او جمع سي همدومره برکت پکښې زياتېږي (مشکوة).

٢. ډوډۍ او خوراکي شيان چي هر څنګه او هر څومره وي پر هغه بايد قناعت وکړه سي او د الله ﷻ فضل او احسان وګڼل سي (عليكم بسنتي).

***

# علامه پوهاند رشاد د پوهانو له انده



الحاج حیات الله رفیقي

د لوي او توانا ذات ﷻ په سپیڅلي نامه!

تر هر څه وړاندي غواړم خپل سلامونه د نېکو هیلو سره جوخت تاسي درنو عالمانو او پوهانو ته د دې درنې غونډې چي د هیواد، د ستر عالم او ادیپوه (علامه پوهاند رشاد) د یادوني په اړه جوړه سوې ده وړاندي کړم. نن خوشحاله ځکه یم چي د خپل هیواد په لرغوني او ښکلي ښار کابل کي چي د تاریخ په اوږدو کي د سیاسي قدرت په څنګ کي د هیواد پلازمېنه دئ د علم، فرهنګ او تمدن زانګو پاته سوی دئ یو واري بیا د تل په څېر د خپلو علمي او پوهنیزو مېړنو د یادوني په سلسه کي د علامه رشاد بابا د یادوني په غونډه کي د شمول حق راکړل سوی دئ.

درنو استادانو او عالمانو!

اجازه راکړئ چي د خپل استاد د څه ناڅه حق ادایني په هیله د خپلي دې لنډي لیکني چي سر لیک ئې دئ: (علامه پوهاندرشاد د پوهانو له انده) یادونه د ستر خوشحال بابا په دې بیت پیل کړم:

د خوشحال قدر که اوس په چا ونه سي
پسله مرګ به ئې یاد کا ډېر عالم
زما له انده علامه بابا پر بدني او فزیکي ښکلا علاوه لوی الله ﷻ باطني او معنوي ښایست هم ور په برخه کړی وو. انساني مینه او حلم ئې د یوه حقیقي انسان د خصلت سره پوره پوره او کامل اړخ لګاوه. علامه رشاد بابا علاوه پر علمیت او پوهي باندي د خپلي اسلامي او افغاني ټولني د فرهنګي، معاشروي، سیاسي او مذهبي ښېګڼو څخه پوره برخمن یو څوک وو. د ده زړورتیا، لوړ اخلاق، استادانه سنجیده حرکات او افغانولي د ده په سیرت او صورت کي انساني هغه ښکلي توکي وه. چي دې ئې نه یوازي دا چي د پوهانو، دیني او مذهبي عالمانو، سیاست والو او د عامو خلکو په زړونو کي محب ګرزولی وو بلکي د نورو هیوادونو په علمي کړیو کي ئې هم ستر ویاړ تر لاسه کړی وو. په حقیقت کي دغه وړ او درونډ انسان په هر ځای کي د هر چا په زړه کي ځای پیدا کړی وو. د ده ورین تندی، مهربانه او پوهمن زړه و هر چا ته د مینې او محبت کور وو. ځکه نو ما د خپلي دې وینا د اثبات په خاطر د لاندي منل سوو پوهانو نظرونه د علامه بابا په اړوند دلته راوړي دي:

لومړی:

اروابناد استاد سر محقق محمد صدیق روهي د علامه د پوهي او تجربې په اړوند داسي وایي: پوهاند رشاد په تاریخ، ادبپوهنه او لغت پوهنه کي د تجربې د درلودلو له امله د روښانفکرانو له خوا د (فاضل استاد) لقب ګټلی دئ. د ده د معلوماتو پراختیا او قوي حافظه اورېدونکي په حیرت کي اچوي، فاضل استاد په اوسني وخت کي د پښتو او فارسي ادبیاتو د کلاسیک متونو د مشکلاتو د حل کولو له پاره مهم مرجع ګڼل کېږي. استاد رشاد نه یوازي د خپل علمي تجربې له کبله بلکي د تقوا او د نفس د مناعت په درلودلو سره د پوهانو او روښانفکره قشر په منځ کي خاص محبوبیت لري.

دوهم:

ډاکټر صاحب پالوال هم د علامه رشاد په اړوند وایي: په یوه بې کتابه ټولنه کي کتابونه پیدا کول آسانه کار نه وو. پوهاند عبدالشکور رشاد د خپلي کورنۍ روزني له مخي څخه هم د دوی پر خپل ځان متکي شخصیت له مخي څخه ځان له ځواني څخه لا له دغو ناخوالو څخه ژغورلی وو. نو دوی و ځانته ډېر هغه کتابونه ورغونډ کړی ول چي دوی خپله اړتیا ورته لیدله او لاس ئې ورر سیدلای سوای. دغو کارو، دوی ته د دې توانایي ورکړي وه چي په خپلو لیکونو کي له دو لارو (طریقه Methods) څخه کار واخلي چي د علمي تحقیق اساس جوړوي. ځکه نو د دوی تاریخي یا نوري اخستني ځورا دقیقي دي. په تاریخي متونو کي ئې هیڅ لاس وهنه کړې نه ده چي دغه د یوه ربنتیاني علمي شخصیت امانت کاري ئې د یوه علمي شخصیت اساسي ښنه ده.

دغسي په نورو علمي او تاریخي موضوعاتو او مسایلو کي په کافي شمېر منابعو سره ئې استناد کاوه چي و شک ته ئې ځای نه پرېښاوه او نه ئې پرېږ ایښی دي. د لغاتو شننه او ګرويږنه ئې هم له دغه رازه څخه وه چي د یوه لانجمن لغت اوز شکلونه ئې په معاصرو او پخوانیو اثارو کي وړاندي کړي دي بل ئې په لغت پوهنه (فقه اللغه) کي هم له مقاسوي او تاریخي لارو چارو څخه کار اخستی څو د ځان او د نورو قناعت ئې حاصل کړی وي ښادروان علامه رشاد د عربي او فارسي لغت په خپلو لیکونو کي په هم هغه اصلي شکل سره استعمالول، که چیري د دوي په لیکونو کي له دغه اصله څخه انحراف ولیدل سي هغه به هرومرو د کاتب یا هغه چاوي چي موږ ئې په غلطه سره مصحح بولو.

و ځوانانو ته ښایېږي چي د ښادروان پوهاند رشاد آثار داسي په دقت سره لوستلي وي څو نه یوازي ئې د دوی له محتویاتو څخه اخستنه کړې وي بل لا د دوی و علمي تحقیقي مېتود ته هم ځېر سوي وي، او زده کړه ئې ځیني کړې وي. ځکه چي د دوی لیکني خوشي لفاظي نه دي بل لا هره جمله او هر عبارت ئې علمي او یا ادبي محتوا لري. دغسي لیکني باید نه یوازي یوه پلا بل لا باید اوز پلاوي ولوستلي سي.

دریم:

استاد رفیع صاحب د استاد رشاد په اړوند وایي: پښتانه وایي "سل دي ومره یو دي مه مره" استاد واقعاً هم د همدې ګوتو په شمېر کسانو له ډلي څخه وو او لوی خدای دي موږ او تاسي ټولو ته د دوی د ویرمن بېلتون د لوی غم د زغم توان راکړي او د دوی دي جنتونه په برخه کړي.

استاد ګڼ اړخېز شخصیت درلود:

لوي استاد مبارز وو او د ژوند تر پایه ئې دا سنګر په مېړانه و جرئت تود وساته. پیاوړی استاد وو، له ښوونځي څخه ئې تر پوهنځي پوری شاګردان ورزول او په انفرادي توګه د ژوند تر وروستي سلګي پوري د مراجعینو استاد او لارښود وو، دقیق او ځیر محقق وو، د تاریخ پوهني، ادب پوهني، ژبپوهني، لغت پوهني، وګړپوهني، کتاب پوهني، ټبرپوهني، عروض پوهني او نورو ټولنیز پوهنو په برخه کي ئې دا بشپړه څېړني کولې چي د موضوع په اړوند ئې لوستونکي ته هر اړخېزه معلومات ورکول همدا ځانګړنو پیاوړي استعداد استاد ته د ژوندي دایرة المعارف بڼه ورکړې وه، چا به چي په هره موضوع کي څه ترې وپوښتل دوی به په داسي توګه لکه د کتاب پاڼې چي را اړوي دقیق معلومات ورکول. سنې حتی د کتابونو مخونه به ئې ورښودل. د استاد هره ناسته د یوه پوهنتون د درس په اندازه خوندوره او ګټوره وه.

څلورم:

لیکوال او څېړونکی ښاغلی محمد معصوم هوتک د استاد په اړوند وایي: پوهاند رشاد صاحب زموږ د زمانې له هغو وتلو پوهانو څخه دئ چي د پوهي او

فضیلت ازانګې ئې د سیمې تر هیوادونو پورې رسېدلې، په هندوستان، پاکستان پخوانۍ شوروي اتحاد او د سیمې نورو هیوادو فرهنګې حلقې د استاد له نامه سره پوره اشنا دي دا ځکه چې د استاد عالمانه څېړنو د هیواد په لوړ روزنیز مرکز کابل پوهنتون کې شل کلنې مودې استادۍ ورته ستر شهرت ورکړی دئ.

پنځم:

د استاد په هکله د سرڅېړونکې ښاغلې زلمی هیوادمل نظر؛ پوهاند رشاد د پښتو ادب ښه وځلاوه، استاد رشاد په هیواد کې او د هیواد نه دباندې د پښتو ادبې څېړنو په کارونو مصروف پاته سوی دئ. کتابونه، رسالې، پر ادبې آثارو سریزې او په لسګونو مقالې ئې لیکلې دي، چې د استاد دغه ګرد آثار د پښتو په معاصر تحقیق کې خپل ځای لري. د استاد رشاد کومې ادبې څېړنې چې ما لیدلې دي زیاتره ابتکاري ارزښتونه لري. استاد د پښتو څېړنو په ځینو داسې برخو کې قلم چلولی دئ چې تر دوی د مخه د چا پام نه دئ وراوښتی د دوی ټولې ادبې څېړنې نوی والی لري. د استاد د څېړنو عمده ځانګړنه دا ده چې دوی د ادبې مسایلو سره سطحي برخورد نه کوي، بلکې مسایل او موضوعات په زیات غور علمي دقت او ژوروالي څېړي. استاد نه یوازې زموږ د هیواد په سطحه بلکې د منطقې د هیوادونو په سطحه یو لوی محقق او دانشمند وو چې علمي او ادبې څېړنې ئې

زموږ د راتلونکو څېړنو له پاره مثالونه دي.

شپږم:

ښاغلې عبدالکریم طالب رحیمي بیا وایي؛ خدای بخښلی اکاډیمېسن پوهاند رشاد صاحب نه یوازې ادبي، علمي او فرهنګې ځلانده سخاوتمنده لمر وو، بلکې هغه اروابناد د (انسان) د کلمې د عالي مفهوم د ټولو صفاتو او ښېګڼو ممثل د اسلام د حمیده اخلاقو او سپېڅلو ممیزاتو څښتن، د پښتو او پښتنوالي ویاړلې جوغه وه چې علاوه پر علمي تبحر ئې هیواد پال ملي احساس، سیاسي تقوا او سپېڅلتیا ئې لرل. قوي حافظه او قوي افاده، فکري نبوغ، د کلام فصاحت، بلاغت، صراحت د منطقي استدلال مطابق نور عالي صفتونه وه چې د کایناتو څښتن ورته عطا کړي وه او د هغه درانه شخصیت ته ئې درونوالی ور په برخه کړی وو. په لنډه توګه ویلای سوای چې د دغه شان عالي ښېګڼو راغونډېدل په یوه شخص کې ډېر په ندرت لیدل کېږي. زه په داسې حال کې چې د اروابناد پوهاند رشاد صاحب سپېڅلي روح ته درودونه وایم د هیواد د دغه صادق خدمتګار فزیکي نستوالی یوه نه جبرانېدونکې علمي او ادبي ضایعه بولم خو د هغه علمي، ادبي، او تاریخي څېړنې او لیکنې به زموږ د فرهنګ تلپاته غنا او شتمني وي چې د دوی یاد تل ژوندی ساتي روح دې ښاد وي.

اووم:

اکاډیمېسنه دکتوره اغلې سامعه عبادي د استاد په اړوند وايي: پوهاند رشاد صاحب په او سمهاله ادبي نړۍ کې د هغو ګوتو په شمار استادانو له ډلې څخه وو چې د څېړنو او تحقیقاتو څخه ئې هیواد، سیمه او نړیواله ټولنه برخمنه وه. پوهاند رشاد صاحب په خپلو څېړنو او لویو آثارو سره د هیواد، تاریخ، ادب او فرهنګ ته بډاینه بخښلې ده او ادبي او علمي ځلېدونکو څېرو په توګه په هیواد او سیمه کې ځلېدلی دئ.

اتم:

د استاد رشاد صاحب په اړوند د اروانښاد مجید بابي نظر: دا چې پوهاند عبدالشکور رشاد د خپل پتمن ژوندانه زیاته برخه ئې د دې لرغوني هیواد او دې مېړني اولس د لرغوني هویت د بیا څرګندتیا په لاره کې په کار واچول، دا چې پوهاند رشاد د پښتو ژبې د ادب د بډايي زیرمې د بډاینې له پاره سترپیاوي وګاللې. دا چې پوهاند رشاد د پښتو د سوچه لغاتو د ژوندي ساتلو په لاره کې د لیکنې د ځغاستې ډګر تود وساته. دا چې پوهاند رشاد د پښتو ژبې له پاره د ژباړې بګړۍ نوره هم هسکه کړه، دا چې پوهاند رشاد د خپل کور او د ناستې درنه کوټه د ژوندي پوهنتون غوندې د پوهې او فیض په پلوشو روښانه وګرځول، دا چې پوهاند رشاد د ښېګڼو مینه وپالل او هغه ئې د معراج تر بریده ورسوله. دا چې پوهاند رشاد د پښتنو د کلاوو غوندې د تقوا او پرهېز یوه درنه کلا وه نو د یوې داسي درني پتمني او ورسره منلي څېرې د مړیني او جسمي بېلتون زیان په تړلو کلمو او کرښو نه سي انځورېدای. نو زه یوازې دونه وایم: اې د استادانو استاده! اې لوی او ستر ښووانده! اې د پوهانو پوهه! او اې د باباګانو په کتار کې رښتینې بابا! ستاسي لوړ اخلاق. ستاسي عظمت. ستاسو لویي، سیاسي درننښت، سیاسي پت او عزت، ستاسي زغم، ستاسي لوی زړه، ستاسي هسکي ټکرۍ، ستاسي انسان دوستي مېلمه پالنه، ستاسي هیواد پالني او بلاخره ستاسي پښتنولۍ ته چې د نورو ښکلاوو یوه بشپړه نړۍ ده سلام کوم، سر ورته ټیټوم او په درننښت ئې لمانځم

نهم:

د محترم پروفیسور عبدالخالق رشید په اند استاد رشاد، دی وايي چې افلاطون به ویل: زه مې له خدایه مننه کوم چې زه ئې د سقراط په زمانه کې هست کړی یم. که زه او زما غوندي یو شمېر هم ووایو چې موږ نېکمرغه یو چې په داسي زمانه کي راهست سو چې په هغه کي داسي کسان لکه: رشاد او حبیبي زموږ لارښود سول دا به ډېره بېځایه خبره نه وي پوهاند رشاد اوس په داسي کسانو کي نه راځي چې په هغه باندي باید د یوه قام، دیوې ژبې. د یوملت او یوه هیواد د سر اوچت وي. دغه نومیالي انسان د خپل کمال له امله د علم په اوچت اسمان کي اوس د ستورو او لمرونو په حساب راځي. په دې مانا چې د انساني پوهې اوسنۍ

منزل ګاه په همدغه د ستورو پر پولو باندي ولاړه ده.

لسم:

د استاد علامه بابا په هکله د اغلې خورسارا بيباني نظر:

مېړني دي چي ياد پړي
په سندرو هم په وير

په دې لړ کي يو هم د پښتو ژبي نامتو اديب، ليکوال، شاعر او ټولنيز شخصيت پوهاند رشاد بابا دئ چي د علمي تجربې د درلودلو په وجه ئې د يوه افاضل استاد لقب ئې تر لاسه کړی دي، بابا د هېواد، د وتلو پوهانو څخه شمېرل کېږي د ده د فضيلت ازانګې تر ډېرو هېوادو پوري رسېدلي دي. مرحوم رشاد بابا د پښتو ادبياتو د دوي په لار کي د لرغوني تاريخ نوم روښانه کړی دئ. علمي، ادبي، تاريخي او فلسفي آثار ئې خپلو هيوادوالو او د ادب مينه والو ته په ډالۍ پرې ايښي دي.

يوولسم:

د ښاغلي درونډ استاد پوهاند رازقي نړيوال نظر: د پوهاند رشاد په اړوند دی وايي: استاد رشاد يو پراخ بعدي شخصيت وو او زموږ د ټولني علمي او فرهنګي، ملي او نړيواله بډايه شتمني وه. هغه د تلپاته وياړونو سمبول وو، چي د پوهي او معرفت مشعلدار او د ژوندانه د ستړي کوونکو مبارزو د ډګرونو علمبردار وو. نو په علمي، فرهنګي، سياسي، فلسفي، تاريخي، ادبي او داسي نور زمينو کي ئې غښتلتيا، پياوړتيا او وړتيا يوه ناپايه سمندر ته پاته کېږي.

دوولسم:

د څېړونکي ښاغلي عبدالمتين متين نظر د علامه بابا په اړوند: زه د خپل استاد علامه رشاد صاحب له پاره په علمي لحاظ بريد او حد نه سم ټاکلای ځکه چي د هغه د علميت او پوهي دايره دومره پراخه او وسيع وه چي د وخت او زماني پر زياترو ئې برلاسی او حاکميت درلودی، د هغه په تندي کي د کوچنيوالي څخه ذهانت او علميت موجود وو. ده پښتنو او پښتو ادب ته يوه داسي ادبي ګران بها ذخيره او پانګه پرېښووله چي دا به د تل له پاره زموږ د ادبي لاري څراغ وي.

ديارلسم:

ښاغلی سيدعابدشاه عابد صاحب د رشاد بابا په اړوند داسي وايي: پوهاند عبدالشکور رشاد د پښتو او پښتنو له پاره يو داسي محترم نوم دئ چي احترام ئې پر هر پښتانه او خصوصاً پر علم دوسته ډلي باندي لازم دئ د ده له مړيني څخه پښتو له يوه داسي تاوان سره مخامخ سوه چي پوره کول ئې ممکن نه ښکاري. رشاد صاحب د ادب لوستونکي يتيمان کړل. د ميني، اخلاص او پوهي نوم عبدالشکور رشاد دئ او تر څو چي دغه روڼاوي ځلېږي رشاد به هم دغه ډول د پښتنو په زړونو کي ژوندی وي.

درنو استادانو او وياړمنو عالمانو زه خپله دا ليکنه د ستر خوشحال بابا په يوه بيت پای ته رسوم او د خپل استاد علامه

اکاډمیسین پوهاند رشاد د ارواخوښې په موخه خپل یوه پارچه شعر د دوی سپېڅلي روح ته تقدیوم:

همېشه به پرې ناري وي د بلبلو
دا چې ساز کړې خوشحال په ویل باغ

## اې استاده!

اې استاده! ته لایق د صفتو یې
صفت څه چې د قدم د مچېدو یې

وامه ته ګوره رڼا د تاریکو وې
په دې لاره کې د هر درد زغم د ګیلو یې

هر څېړونکی ستا ولاس ته وه نښکلي
ته لایق استاد د هر فن د علمو یې

وایم تا پښتو ادب ته وده ورکړه
ته اجل د تورو شپو د تاریکو یې

ځکه ستا په منزلت فخر کومه
ته ځلانده ستوری د ټولو پرګنو یې

ګوره ستا څه په مزلو بدییني تښتي
ته حامي د پراخ وحدت د طریقو یې

د بې علمۍ ډکې راکاږې په قلم ته
یو سمبول د اخوت د پلوشو یې

ګوره ته د مال ثروت څخه په څنګ وې
ته شایق د انساني ټوله خویو یې

د نفاق د کلمو سره ډېر وران وې
ته عاشق پر بشري ټول اصولو یې

ستا هره نغوته وه کیمیا د ماتو لیچو
ته مسیح د خوږو زړونو د رملو یې

وایم ته د لارورکو مرستندوی وې
ګمراهانو ته سالار د قافلو یې

تا صفا کړه تور فکرونه په ښوونه
په دې لار کې سرغنه تر ډېر سرو یې

وایم تا ښوونیز بهیر دې هڅولی
په دې لار کې وام ساعي د ډېر فکرو یې

ستا ناستون و هر محقق ته څېړنتون و
ستر رشاده ته ځلا د پلوشو یې

لمر دې وینم پر مزار چې نور ترې څاخي
ته یاد سوی په ویاړمنو مجلسو یې

رفیقي دې مغفرت د الله غواړي
ځکه ته استاد د ښکلو لوړ خیالو یې


اخځلیکونه:

۱. بابی. عبدالمجید. ستاینې او ویرنې.
۲. د مقالو ټولګه. علامه رشاد په ننګرهار کې.
۳. د کندهار مجله، ۱۳۸۴ل کال پنځمه او شپږمه ګڼه.
۴. د هوډ مجله، ۱۳۸۳ل کال اتمه او نهمه ګڼه.



مترجم

داکټر محمدصدیق ظهیر

# بین المللي سیاست

## خارجي پالیسي او د هغه تحلیل

شلرمه برخه

*****

په لومړي فصل کي تاسي ته نړیواله ډرامه او په دوهم فصل کي ئې لنډه تاریخچه دروپېژندل سوه. اوس دا وخت را رسېدلی دئ چي خپله توجه دې ته راواړوو چي د نړۍ پر سټېج باندي د عمل محرکه قوه څه شی ده. [یعنی دا نړیواله ډرامه کومي قواوي سره څرخوي او څرنګه ئې سره څرخوي]. څرنګه چي دولتونه، په اوس عصر کي او هم له ډېر پخوا راهیسي، د نړۍ د سټېج ډېر مهم او باقدرته اکټران [لوبغاړي] دي، نو موږ به دلته پر دې باندي زیات زور واچوو چي دولتونه خارجي پالیسی څرنګه جوړوي او په څه ډول ئې عملي کوي. د نړۍ په سیاسي ډګر کي، زیات وخت ځیني دولتونه یو عمل کوي او نور دولتونه بیا، په مستقیمه یا غیری مستقیمه توګه، د بین المللی سازمانونو له لاري عکس العمل ښکاره کوي. یقیني خبره ده چي یوازي دولتوته نړیوال لوبغاړي نه دي. د ولادیمیرپوتین

Vladimir Putin په شان افرادو د تصمیم نیولو پروسې. د ملګرو ملتونو (UN) په شان بین المللي حکومتي سازمانونه (IGO). او همدارنګه بین المللي غیرحکومتي سازمانونه (NGO) به په راتلونکي فصلونو کي تشریح سي.

لکه چي په راتلونکو صفحو کي به ئې تفصیل ووینو. د خارجي پالیسی پروسه ډېره پرله پېچلې ده. تحلیلګران د خارجي پالیسی د پروسې د باریکیو د روښانولو لپاره هغه د دې لاندي درو زاویو څخه مطالعه کوي:

۱. له فردي زاوئې څخه تحلیل: چي پر پالیسی باندي د خلګو تأثیر د انفرادي اشخاصو په حیث مطالعه کوي.

۲. له دولتي زاوئې څخه تحلیل: چي پر پالیسی باندي د حکومت د سازمان او اجراآتو تأثیر مطالعه کوي.

۳. د سیستم له زاوئې څخه تحلیل: چي د یوه هیواد پر پالیسی باندي د خارجي فشارونو نفوذ مطالعه کوي.

**له فردي زاوئې څخه تحلیل:**

د فردي زاوئې څخه تحلیل له دې نظر څخه راپیل کېږي چي د پالیسي جوړولو ریښه په خلګو کي پرته ده، یعني خلګ دي چي پالیسي جوړوي. ځکه نو. د فردي زاوئې څخه تحلیل د انسانانو د تصمیم نیولو په پروسه باندي پوهېدل په بر کي نیسي. مثلاً په دې باندي ځان پوهول په کار دي چي انسانان د یونوع په توګه څرنګه تصمیم نیسي.

**انسان د یو نوع په توګه:**

یوه مهمه پوښتنه دا ده چي د انسان ذاتي خصلتونه پر پالیسی باندي څومره نفوذ لري؟ د دې پوښتنی د جواب له پاره باید لومړی په دې ځان پوه کړو چي انسانان ډېر لږ وخت معقول تصمیم نیسي. د مثال په توګه. تاسي دا تصمیم چي کوم کالیج ته بایْد ولاړ سئ. څرنګه ونیوئ؟ ښکاره خبره ده چي تاسي دا تصمیم د شېرخط له لاری نه دئ نیـ لی. مګر نو پوره او معقول تصمیم مو هم ، ه دئ نیولی. آیا تاسي د هیواد ټول کالیجو ه، کلنی مصرف ئې، موقعیت، اجتماعي ، ،یط، د استادانو لیاقت، درسی پروګرامونه، او د فارغه کېدلو په صورت کي د کار د امکاناتو له پلوه مطالعه او تحلیل کړي دي؟ ډېر امکان لري چي ستاسي د کالیج د انتخاب تصمیم و کور او کورنی ته د نژدې والي او یا نورو دې ډول مسایلو تر تاثیر لاندي راغلی وي.

زموږ تصور دا دئ چي د خارجي پالیسی تصمیم نیول به کاملاً پر معقولیت بنا وي، مګر رشتیا خبره دا ده چي له ډېرو جهتونو څخه ئې ستاسي د کالج د انتخاب له پروسې او ځینو نورو تصمیمونو سره چي تاسي ئې په ورځني ژوند کي نیسی، چندانې توپیر نه لري. د خارجي پالیسی تصمیمونه هم د ادراکي، احساساتي او ځیني وخت حتی د بیولوژیکي فکتورونو تر اغیزې لاندي راځي.

**ادراکي فکتورونه:**

هغه څه چي تاسي د کالیج په انتخاب کي وکړل او هغه څه چي لیډران ئې د خارجي پالیسی په تصمیم کي کوي، ادراکي تصمیم نیول cognitive decision making بلل کېږي. معنی ئې دا ده چي تصمیمونه د «محدود معقولیت» په چوکاټ کي نیول کېږي. [یعنی د معقول

او منطقي تصميم نيولو له پاره محدوديت وجودلري]. ورک، غلط او بې مفهومه معلومات خارجي محدوديتونه دي. د مثال په توګه، د امريکې جمهور رئيس بوش او د برتانيې صدراعظم بلېر د ۲۰۰۳ کال په مارچ کې دې تصميم نيولوته اړ سول چې پر عراق يرغل وکړي مګر په دې نه پوهېدل چې ايا صدام حسين به په عکس العمل کې د امريکې او برتانيې پر قواوو باندې کيمياوي يا بيولوجيکي حمله وکړي او کنه. د معقول تصميم نيولو په اړه داخلي محدوديتونه بيا زموږ په انساني ضعفونو پوري اړه لري. مثلاً، ځيني وخت د ډېرو پرله پېچلو موضوعاتو د مطالعې له پاره زموږ پوهه کفايت نه کوي. په ۲۰۰۳ کال کې د عراق د حملې پر وخت «واقعيتونه» چې هر څه وه، موجود معلومات دومره زيات وه چې د ټولو هضمول د جمهور رئيس بوش، صدراعظم بلېر، جمهور رئيس صدام حسين، يا هم د کوم بل انسان له پاره، ډېر ګران کار وو.

ښکاره خبره ده چې موږ نه غواړو داسې فکر وکو چې موږ نامعقول يو، نو د دې له پاره چې د خپلو ادراکي محدوديتونو سره مقابله وکولای سو، د لاندې دريو ستراتيژيو څخه کار اخلو.

### د ادراکي تداوم لټول:

د ادراکي انسجام د لټولو په لار کې تصميم نيوونکی هڅه کوي پر هغو معلوماتو سترګې پټې کړي چې د دوی د موجودو نظرياتو سره په تناقض کې وي. د عراق په هکله به د وړاندې سوو معلوماتو او ناسمو معلوماتو misinformation [يعني هغه معلومات چې قصداً غلط وړاندې سوي وي] مناقشه تر ډېرو کلونو پوري روانه وي. مګر دا پوښتنه بېځايه نه ده چې ولې په لندن او واشنګټن کې تصميم نيوونکي دې ته لېوال وه چې د برتانيې د استخباراتي ادارې دا ادعا ومني چې ګويا بغداد هڅه کوله د نايجير Niger څخه يورانيوم وپلوري او د امريکې د خارجي استخباراتي ادارې CIA پر وړاندې سوو مستدلو شکونو ئې سترګې پټې کړې. يو علت ئې دا دئ چې د صدام حسين په هکله دبرتانيې د استخباراتو د ادارې ادعا د تصميم نيوونکو له منفي ذهنيت سره سر خوړي. که چېرې هغه معلومات منل سوي وای چې د عراق د اټومي پروګرام نستوالی ئې په ګوته کاوه، نو دې کار به د دوی له پاره ناوړه ادراکي تناقض او ناهم آهنګي منځ ته راوړې وای.

### غير عملي هيله درلودل [خيال پلو]:

د دې له پاره چې خپل تصميمونه توجيه کړو، موږ انسانان زيات وختونه ځانونه په دې قانع کوو چې زموږ انتخابي تصميمونه به بريالي سي. د مثال په توګه، په دې خبره باندې پوهېدل ګران دي چې ولې صدام حسين، سره له دې چې د امريکې غوندې ستر نظامي قدرت سره مخامخ وو، بيا هم په خارج کې تر محفوظ تبعيد ئې له امريکې سره د جګړې لاره غوره کړه. دليل ئې، د ده د پخوانيو ملګرو او همکارانو په وينا، دا دئ چې صدام حسين په دې باور وو چې دی به بيا هم پر قدرت حاکم پاته سي. د عراقي ديکتاتور په فکر، په ۱۹۹۱ کال کې د ده ماته يوازې يو تاکتيکي شاتګ وو. د ده دا غيرعملي هيله [خيال پلو] د ۲۰۰۳ کال تر جګړې لږ څه مخکې له يوه خبريال سره په خبرو کې

ښه څرګندېږي. خبريال دې ټکي ته په اشاره کولو سره چې دا ځل عراقي قواوې تر پخوا لا هم له زيات زورور نظامي قوت سره مخامخ دي، دا پوښتنه رامنځته کړه چې: "تاسي ولي فکر کوئ چې دا ځل به تاسي په جګړه کي بريالي سئ؟" دعراقي مشر جواب دا وو چې: "په ۱۹۹۱ کال کی عراق مات سوی نه دئ. په حقيقت کي، موږ خپلي نظامي قواوي له کويټ څخه د خپل تصميم له مخي راوايستلې... موږ خپلي قواوي د عراق داخل ته رانښه ايستلې څو د عراق په دننه کي جګړې ته دوام ور کړای سو". د خپل خيال پلو په دوام، صدام حسين خبريال ته ډاډ ورکوي: "که چيري جنګ پر موږ باندي تحميل سي، عراق به بيا هم پرځپل ځای پاته سي... حتی که ډېر ستر قدرت هم وغواړي چې موږ له منځه يوسي. [موږ] به په اسانی سره له منځه ولاړ نه سو".

**احساساتي فکتورونه:**

موږ داسي فکر کوو چې تصميم نيوونکي ليډران په سړه سينه معقول تصميمونه نيسي، مګر واقعيت دا دئ چې دوی هم خوابدي کيږي، درد ورځي، غمجن کيږي او د نورو په شان د بېلابېلو بشري احساساتو سره مخامخ کيږي. د مثال په توګه، په ۱۹۸۰ ميلادي کال کي په اېران کي د امريکې سفارت د ايراني ځوانانو له خوا اشغال او د سفارت مامورين يرغمل ونيول سول. د هغوی په ملاتړ په امريکي کي اېراني زده کوونکو د سپيني ماڼۍ مخي ته په مظاهرو لاس پوري کړ نو د امريکې جمهور رئيس جيمي کارتر Jimmy Carter ډېر په قهر سو او وې ويل دی غواړي "چي جادو ته په څپله ور ووزي او دا... حراميان وډبوي". کارتر نه سوای کولای چي د پنسلوانيا جادې ته، چې سپينه ماڼۍ پر پرته ده، ورووزي او مظاهره کوونکي په څپله وډبوي. مګر د ده قهر او نا اميدی ښايي پر هغه نامعقول تصميم تأثير کړی وي چي ده د يرغملو د نجات په هکله ونيو. همدارنګه، د امريکې جمهور رئيس بوش د سپټمبر د يوولسمي تروريستي حملوسخت په قهر کړ. د، خپل مرستيال چيني Cheney ته وويل: "موږ به هغه کسان چي دا کار ئې کړی دئ پيدا کړو او [حيادي وي] کونه به ئې ورڅيري کړو".

**جنسيت:**

ځيني پوهان په دې عقيده دي چي د يوه شخص جنس sex (ښځيتوب او نارينتوب) پر سياست باندي مهم اثر لري. مګر، جنسيت gender بيا يو اجتماعي ساختمان دئ چي زموږ د اجتماعي معاشرت له لاري خلق سوی دئ. ښايي ډېر ټولنپوهان په دې عقيده وي چي جنسيت د اشخاصو پر سياسي سلوک او کردار اثر لري، مګر دا چي جنس sex به هم په همدې اندازه اثر ولري چنداني باوري نه دئ. موږ له دې مفکورې سره موافق يو او وينو چي پر سياست باندی د ښځو او نارينه وو اثر د هغو ارزښتونو نتيجه ده چي د کورنۍ او ټولني له خوا دوی ته تلقين سوي دي.

پوليټيکل ساينټسټان همدا اوس غواړي دا معلومه کړي چي ايا د خلګو جنسيت د دوی په سياسي طرز تفکر او طرزالعمل کي څه توپير راولي او کنه. دا ښکاره خبره ده چي د بېلابېلو مسايلو په هکله د عمومي نظرغوښتني Polls پر

وخت، د ښځو او نارینه وو د نظر تفاوت وجود لري. جنګ او سیاسي تشدد یو له هغو موضوعاتو څخه دئ، چي ښځي او نارینه د هغو په باب متفاوت نظریات لري. له دوهمي عمومي جګړې راهیسي، د امریکې په متحده ایالتو کي د عامه افکارو سروې polls دا ښیي چي هر وخت ښځي تر نارینه وو لږ د جنګ او د جنګ د دوام غوښتونکي دي. د مثال په توګه، په ۲۰۰۳ ع کي، د امریکې دوه پر درې برخي نارینه وو او یو پر دوه برخو ښځو د عراق د جنګ ملاتړ وکړ. د جنسیت دا ډول خلا په بین المللي نظر غوښتنو کی هم موندل سوله. د مثال په توګه. په آسترالیا، کاناډا، برتانیا او ایټالیا کي، د ښځو په تناسب د ۱۰ څخه تر ۱۵ فیصده زیات نارینه د جنګ پر خوا وه. د سیاسي تشدد د نورو اشکالو په هکله هم مشابه نتایج وجود لري. د یوې سروې له مخي چي څه وخت مخکي په یوولسو اسلامي هیوادونو کي د ځانمرګي بریدونو په هکله سر ته رسېدلې وه، دا ښیي چي په سلو کي ۳۵ نارینه وو او په سلوکي ۳۱ ښځو ځانمرګي بریدونه عادلانه عمل بللی وو.

د جنسیت خلا ولي موجوده ده؟ آیا علت ئې د ښځو او نارینه وو په بیالوجیکي ځانګړیتوب کي دئ، او که دا توپیر د ښځو او نارینه وو د اجتماعي معاشرت څخه رازېږېدلی دئ؟ د جنسیت مفکوره، چي د جنس سره توپیر لري، پر دې عقیده ولاړه ده چي د نارینه وو او ښځو تر منځ سلوکي behavioral تفاوتونه د دوی د ټولنیز رول څخه راپیدا سوي دي. په دې توګه ویلای سو چي جنس sex بیالوجي او جنسیت gender سلوک یا کردار دئ. ځیني پوهان بیا استدلال کوي چي بیالوجي په کلکه سلوک او کردار کنټرولوي.

اوس دا پوښتنه رامنځته کېږي چي که د خارجي او دفاعي چارو په تصمیم نیولو کي ښځي او نارینه برابره (یا ښایي زیاته) برخه واخلي آیا دوی به په جهاني سیاست کي تغیر راوستلای سي؟

فرانسیس فوکویاما (۱۹۹۸) Francis Fukuyama دې نتیجې ته رسېدلی دئ چي نړۍ به د ښځو په رهبرۍ "د لږو ټکرونو سره مخامخ وي او پخلاینه او همکاري به تر اوسني حالت پکښې زیاته وي". د دې مفکورې په ملاتړ، په دې نژدې وختو کي یوې څېړني دا ښودله چي ښځي د مناقشاتو د حلولو له پاره د همکارۍ او مصالحې لاره غوره کوي او نارینه بیا د ټکر او تصادم خوا ته میلان لري.

تاسي څه فکر کوئ؟ که د جورج بوش مالدینه، لورا بوش، د امریکې جمهور رئیسه وای؛ ساجده خیرالله، د صدام حسین مېرمن، د عراق مشره وای او همدارنګه د عراق او امریکې ډیپلوماټیکي او د ملي امنیت چاري د ښځو په لاس کي وای، آیا امریکې به پر عراق حمله کړې وای؟

## سازماني سلوک:

د انسانانو یوه بله عمومي مشخصه دا ده چي په ډله ییز حالت او انفرادي حالت کي د دوی د فکر کول او عمل کول توپیر کوي. دا موضوع په لاندي دوو مفهومو کي ښه تشریح کېدای سي چي یو ئې د رول سلوک اوبل ئې د ګروپي تصمیم نیولو سلوک دئ.

## د رول سلوک:

موږ ټول چې په هر حالت کې قرار لرو، د خپل تفکر پر اساس د هغه حالت په هکله یو رول لوبوو. د مثال په توګه، تاسی د پروفیسر، شاګرد، آمر، کارګر او یا هم د مور او پلار په توګه بېلابېل رولونه لوبوئ. جمهور رئیسان او نور پالیسي جوړوونکي هم خپل رولونه لوبوي. د رول له پاره نسخه د دوو شیانو له ترکیب څخه جوړه سوې ده: یو ئې ځاني توقعات دي (یعني چې موږ له خپل ځان څخه د څه ډول عمل توقع کوو)، بل ئې خارجي توقعات دي (یعني چې نور خلک زموږ څخه د څه ډول عمل توقع کوي). د لیډرانو څخه د خلګو توقعات د مشاورینو، انتقاد کوونکو او عامه افکارو له لاری دوی ته انتقالېږي. یوه عامه توقع دا ده چې لیډران قاطعیت ولري. هغه لیډر ته چې د یوې ستونزې سره د مخامخ کېدلو پر وخت ووایي چې، "زه نه پوهېږم څه وکړم"، او یا "موږ هیڅ نه سو کولای"، د یو کمزوري لیډر په سترګه کتل کېږي.

د مثال په توګه، د امریکې جمهور رئیس بوش د سپټمبر د یوولسمي د حملو پر وخت د امریکې د فلوریډا په ایالت کې وو. او د امریکې خفیه سرویس Secrete Service غوښتل چې جمهور رئیس تر واشنګټن دباندي په کوم بل ځای کې محفوظ وساتل سي. مګر ډېر ژر پر بوش باندي د جمهور رئیس په حیث د ده د رول احساس غالب سو. او په قهرجنه لهجه ئې خپل د دفتر رئیس ته وویل، "زه غواړم ژرتر ژره بیرته واشنګټن ته ولاړسم". په همدې مازدیګر پر اووه بجې دی بیرته په سپینه ماڼۍ کې حاضر وو او ۹۰ دقیقې وروسته ئې ملت ته خطابه وکړه. جمهور رئیس دا احساس کړه چې په سپینه ماڼۍ کې د جمهوري ریاست پر چوکۍ دده وجود د خلګو د اطمینان له پاره ډېر اهمیت لري. په راوروسته کې جمهور رئیس بوش وویل: "یو له هغو شیانو څخه چې ما غوښتل په دغه ورځ ئې وکړم هغه د خلګو داعصابو ارامول وه. ما احساس کړه چې د اعلی قومندان په حیث ما ته وظیفه درلودله چې خلګو ته ډاډ ورکړم چې زه، د جورج بوش په حیث نه بلکې د جمهوررئیس په حیث، محفوظ او سالم یم..."

## په سازمانونو کې دننه د تصمیم نیولو سلوک:

کله چې خلک په یو سازمان کې دننه مشوره ورکوي او یا تصمیم نیسي، دوی نه یوازې باید خپل نظر په پام کې ولري بلکې دا هم باید په نظر کې ونیسي چې د دوی نظریاتو او تصمیمونو ته د سازمان نور غړي، په تېره بیا لیډران، څرنګه ګوري. په دې جریان کې ګروپي فکر groupthink انکشاف مومي. د دې مفهوم معنی دا ده چې د سازمان په دننه کې غړي تر فشار لاندي وي څو د مسایلو په هکله د همآهنګۍ او همږغۍ د لاسته راوړلو له پاره د جاري او مسلط نظر، په تېره بیا د لیډر له نظر سره. موافقه وښیي.

که څوک د سازمان په دننه کې د جاري نظر سره جدي مخالفت وښیي، له سازمان څخه ایستل کېږي او یا د سازمان پرېښوولو ته مجبورېږي. د امریکې د دفاع وزیر رمسفیلډ Rumsfeld په ۲۰۰۳ کال کې غوښتل د عراق د اشغال له پاره په نسبي توګه وړه قوه ولېږي. د امریکې د

ځمکنیو قواوو مشر جنرال ایریک شینسکي Eric Shinseki، د دفاع له وزیرسره په مخالفت کي دامریکې کانګرس ته وویل چي د دې کار له پاره څو سوه زره کسیزه قوه په کار ده. مګر د رمسفیلډ د "زما پر لار ولاړ سه یا ئې پرېږده" د روش له مخې جنرال شینسکي استعفی ته مجبور کړه سو. د رمسفیلډ دې ډول اعمالو ټول نظامي لیډرشیپ ته ډېر ښکاره اعلان وکړ چي خاموش اوسي او له انتقادونو څخه ډډه وکړي، په داسې حال کي چي امریکې تر هر وخت زیات و انتقادي قضاوت ته اړتیا لرله. تاریخ وښودل چي په وروسته کي هر څوک په دې پوه سول چي جنرال شینسکی پر حق وو.

په ځینو حالاتو کي، یوه لیډر ته بې خونده او نه خوشحالونکې مشوره ورکول د مشوره ورکوونکي په تاوان تمامېږي. یو د علتو څخه چي صدام حسین خپل د بریالیتوب غلطه محاسبه وکړه دا وو چي د ده جنرالانو ده ته پر واقعیت بنا مشورې ور نه کړې او یا ئې نه سواى ورکولاى. دا جنرالان په دې پوهېدل چي دوی د امریکې او برتانیې د حملو تاب نه لري دوی صدام حسین ته د رشتیا ویلو څخه ببرېدل. لکه یوه عراقي جنرال چي وروسته دا تشریح کړه چي: "موږ هیڅکله رشتیني معلومات وړاندي نه کړل ... هر قومندان چي به رشتیا وویل سر به ئې بایلوی".

حتی که یو لیډر روښانه مشوره وغواړي بیا هم ځیني وخت ډېره مشکله ده لاس ته ئې راوړي ځکه د دې امکان ستنه چي ګروپي فکر د دې کار مخه ونیسي. یوه مشاور د جمهور رئیس بوش د وخت سپیني ماڼۍ ته د معلوماتو د جریان په هکله تبصره کوله چي: "جمهور رئیس هغه څه چي غواړي په پوه سي، لاس ته راوړي، مګر حتمی نه ده هغه څه لاس ته راوړي چي دی ئې پوهېدو ته اړتیا لري". خراب تصمیمونه زیات وخت د ګروپي فکر محصول وي، ځکه نو د داسي ستراتیژیو غوره کول په کار دي چي د غلطو تصمیمونو مخه ونیولای سي.

## لیډران او د دوی انفرادي ځانګړي مشخصات:

د خارجي پالیسیو جوړول زیات وختونه د یوه هیواد د لیډرانو په لاس کي وي، ځکه نو له فردي زاوئې څخه تحلیل پر یو بل روش، چي د فردي خصوصیت تحلیل idiosyncratic analysis بلل کېږي، تمرکز کوي. دا د افرادو په حیث د انسانانو مطالعه ده چي د تصمیم نیولو پر پروسې باندي د هر یوه لیډر شخصي مشخصات (idiosyncratic) تر څېړني لاندي نیسي.

د فردي خصوصیت په تحلیل کي اساسي پوښتنه دا ده چي د لیډرانو شخصي مشخصات د دوی پر تصمیمونو څرنګه اثر ښندي. ولي، د مثال په توګه، د ځوانو لیډرانو په تناسب په عمر پاخه لیډران و نظامي تصادماتو ته زیات میلان لري. د ډېرو ممکنه فکتورونو په لړ کي ئې، دا څلور د پاملرني وړ دي: شخصیت personality، جسماني او د ماغي روغتیا، خودخواهي او جاه طلبي ego and ambition، سیاسي سابقه او شخصي تجربې.

**شخصیت:**

د انسان د شخصیت او پر پالیسي باندي د هغه د تأثیر په مطالعه کولو کي، پوهان د ځان او نوروخلکو په وړاندي د لیډرانو دریځ ټاکنه، د دوی عمومي سلوک او د سیاسي قدرت سره د دوی د برخورد طرز تر څیړني لاندي نیسي. د سیاسي شخصیت political personality ډېره مشهوره درجه بندي د فعال- غیرفعال او مثبت - منفي درجه بندي ده. فعال لیډران د پالیسی مبتکرین وي؛ غیرفعال لیډران د پالیسی په وړاندي عکس العمل ښیي. د مثبتي پرسونالیټۍ خاوندان دومره جاه طلبي ego لري چي د جنجالي سیاسي محیط څخه خوند اخلي. د منفي پرسونالیټۍ خاوندان سیاسي انتقادونه نه خوښوي او د ځان له پاره ئې یو دروند بار بولي. ډېر پوهان فعال او مثبت ولسمشران خوښوي. مګر څلور سره موډلونه خپل ځانته کمزوري اړخونه لري. د فعالي پرسونالیټۍ خاوندان، د مثال په توګه، ښایي په داسي یو حالت کي عملي ګام واخلي چي انتظار او یا هیڅ نه کول په ګټه وي. لکه د امریکې د متحده ایالاتو یو پخواني خارجه وزیر ډین رسک Dean Rusk (۱۹۹۰) چي ویلي دي: "موږ هر وخت د عملي ګام اخیستلو ته لېوال یو. په داسی حال کي چي که وخت ورکړه سي ځیني پرابلمونه په خپله ځان ته د حل لاره پیدا کوي او یا په خپله له منځه ځي".

هر ترکیب چي په نظر کي ونیسو. فعاله - منفي پرسونالیټي تر ټولو خرابه ده. هر څومره چي یو لیډر فعال وي. په هماغه اندازه د انتقادونو سره مخامخ کېږي. د مثبتي پرسونالیټۍ خاوند لیډر انتقادونه په سړه سینه اوري، مګر د منفي پرسونالیټۍ خاوندان خپلو مخالیفینو ته د دښمنانو په سترګه ګوري. په همدې علت د منفي پرسونالیټي خاوندان پر ځان داسي مشاورین او تر امر لاندي مامورین راټولوي چي د ده ملاتړ کوي ا هغوی ده ته د ګروپي فکر پر اساس د داخلي او بین المللی پېښو په باب غیر واقعي تصویر وړاندي کوي. د امریکې دوه جمهور رئیسان، لیندن جانسن Lyndon Johnson او ریچارډ نیکسن Richard Nixon دواړه د فعالي - منفي پرسونالیټۍ خاوندان وه. دوی پر خپلو مخالفینو حملې کولې او په عمومي توګه ئې د مخفي مورچل ذهنیت bunker mentality ته وده ورکړې وه [یعني هر وخت چي د دښمن څخه په یو پټ ځای کي ناست وي او پر دښمن باندي د حملې په انتظار کي وي.]

**جسماني او دماغي روغتیا:**

د یوه لیډر جسماني او دماغي روغتیا د تصمیم نیولوپه پروسه کي مهم فکتورکېدای سي. د مثال په توګه. د امریکې جمهور رئیس فرانکلین روزویلت Franklin Roosevelt په ۱۹۴۵ کال کي د لوړ فشار لرلو له امله دومره ناروغه وو چي د یوه تاریخ پوه په قول. "د حکومت کولو وړتیا ئې نه درلودله". ځیني تحلیل ګران په دې عقیده دي کله چي جمهور رئیس روزویلټ د ۱۹۴۵ کال دفبروري په میاشت کي د برتانیې د صدراعظم وینستن چرچیل او د شوروي اتحاد له مشر سټالین سره په ایالټا کي وکتل، په دې وخت کي جمهور رئیس روزویلټ دومره ناروغ او کمزوری وو

چې پر ختيځې اروپا باندې د شوروي د تسلط په هکله ئې د ستالين د غوښتنو په وړاندې مقاومت ونه کولای سواى. دوې مياشتې وروسته جمهور رئيس روزويلټ د يوې قوي دماغي حملې stroke له امله مړ سو.

ځينې وخت ليډران د سايکالوجيکي پرابلمونو څخه هم رنځ وړي. ډېر امکان لري چې آدولف هيټلر د يوې ناروغتيا له امله، چې ښايي د سفليس د ناروغۍ پرمختللې حالت په وو، دماغي توازن نه درلود. ده د خپلې ناروغۍ له امله ډېرې دواوې استعمالولې او ښايي دا به د دوهمې عمومي جګړې په ورستيو شپېو کې د ده د احساساتي تصميم نيولو يو علت وو.

الکهول هم کېداى سي چې پرابلمونه منځ ته راوړي. يو وخت د امريکې بهرنيو چارو وزير د امريکې جمهور رئيس ريچارډ نيکسن "زما نشه ملګرى" بللى وو. ويل کېږي چې يو وخت جمهور رئيس نيکسن له شوروي اتحاد سره په يوه بين المللي بحراني حالت کې دومره نشه وو چې په ځان نه پوهېدى.

### خودخواهي او جاه طلبي:

د يوه ليډر خودخواهي او شخصي جاه طلبي هم پر پاليسي باندې اغېزه ښندلاى سي. يو شى چې ښايي صدام حسين ئې تشويق کړى وو هغه د خپل ځان په هکله د سترتوب تصور وو. د يوه استخباراتي رپورټ له مخې، صدام حسين ځان د نيبوکد نصر Nebuchadnezzar [چې تر ميلاد مخکې ۵۶۳-۶۰۵ دبابل ستر پاچا وو]، او صلاح الدين سره [د مصر پاچا چې په ۱۱۸۹ کال ئې عيسويانو ته په دريم صليبي جنګ کې ماته ورکړه] مقايسه کاوه.

د امريکې د جمهور رئيس لومړي بوش خودخواهي ego هم ښايي د امريکې پر پاليسى اثر ښندلى وي. کله چې دى په ۱۹۸۹ کال کې د جمهوري رياست پر چوکۍ کښېنوست، د يو بې ارادې جمهور رئيس په حيث ئې شهرت درلود او د نيوزويک مجلې د ده يوعکس د "د ضعيف النفسه عنصر" له شعار سره يو ځاى خپور کړ. داسې ويل کېداى سي چې د بوش خودخواهۍ ته صدمه ورسېدله ځکه نو ده هڅه وکړه چې ډېر سخت دريځى واوسي. بوش ډېر ژر پر پاناما Panama حمله وکړه، او په دا بل کال ئې د فارس د خليج په بحران کې دومره سخت دريځ غوره کړ چې له عراق سره د مذاکرې له پاره ئې هيڅ ځاى پرې نه ښود او عراق بايد يا جنګ کړى واى او يا تسليم سوى واى. يقيناً دا به ډېره درنه ادعا وي که موږ ووايو چې جمهور رئيس بوش پر عراق باندې د حملې تصميم د خپلې خودخواهۍ د ارضا له پاره ونيو. مګر دا به هم ساده ګي وي چې پر دې فکټور باندې ستر ګې پټې سي. په حقيقت کې، د پاناما او عراق تر ماتې وروسته، جمهور رئيس دې خبرې ته اشاره وکړه او وې ويل چې: "هغه کسان دې خپله خبره بيرته واخلي چې پر ما ئې په يوه مشهوره مجله کې د بې ارادې تهمت لګولى وو".

### سياسي سابقه او شخصي تجربې:

تصميم نيوونکي د دوى د شخصي تجربو تر اغېزې لاندې هم راځي. دا چې په ۲۰۰۳ کال کې د صدام حسين د ايسته

کولو په تصمیم کې د جمهور رئیس بوششخصي تجربو څومره اثر درلودلی وو، په فکر کولو ارزي. دا ښکاره خبره ده چې بوش پر خپله کورنۍ باندې ډېر ګران دئ. د دې فامیلي ګرانښت له امله، ځوان بوش د خپل پلار په باب د منتقدینو له انتقادونو سره، چې ګواکې ولې ئې عراقي دیکتاتور په ۱۹۹۱ کال کې له منځه یونه ووړ، ډېر حساس وو. ځیني کسان په دې باور دي چې ښايي دې انتقادونو ځوان بوش ته دا فکر ورپیدا کړی وي چې صدام حسین باید په هرصورت له منځه یووړل سي. سربېره پر دې، زیات کسان په دې عقیده دي چې صدام حسین هڅه وکړه چې لومړی جمهور رئیس بوش، کله چې په ۱۹۹۳کال کې د کویټ څخه لیدنه کوله، ووژني. نهه کاله وروسته، د ده زوی دوهم جمهوررئیس بوش په یوه غونډه کې وویل: "په دې کې شک نسته چې صدام حسین نه سي پاتېدلای. ځکه چې ده غوښتل چې زما بابا په کویټ کې مړ کړي". د سپیني ماڼۍ مقاماتو ډېر ژر اعلام وکړ چې د جمهور رئیس مطلب دا نه وو چې د عراقي دیکتاتورله منځه وړل یوه (شخصي) موضوع وګرځوي. مګر د یوه مخلص زوی ضدیت له صدام حسین سره د نه منلو خبره نه ده.

### د دولت په سطحه کې (د دولتي زاوئې څخه) د پالیسۍ تحلیل:

سره له دې چې بشري فکتورونه ډېراهمیت لري، پالیسي جوړول د یو سیاسي ساختمان په محدوده کې سرته رسېږي. هیواد یا مملکت یو له ډېرو مهمو سیاسي ساختمانو څخه دئ. د پالیسۍ په جوړولو کې د سیاسي ساختمانو په اغېزې باندې ځان پوهول زموږ سره د دولت په سطحه کې د پالیسۍ په تحلیل کې مرسته کوي. دا ډول تحلیل د دولتونو پر مشخصاتو او دا چې دولتونه خارجي پالیسۍ څرنګه جوړوي تأکید کوي. دا خبره مهمه ده چې د یوه هیواد سیاسي ساختمان او په هیواد کې دننه سیاسي قواوې څرنګه د حکومت پر خارجي پالیسۍ باندې اثر ښندي.

### د حکومت ډول (نوعیت) او د خارجي پالیسۍ پروسه:

یوشی چې د یوه هیواد د خارجي پالیسۍ جریان او پروسه متأثره کوي هغه په هیواد کې د حکومت ډول دئ. هر څومره چې حکومت استبدادي authoritarian وي، په هماغه اندازه ښايي خارجي پالیسي په حکومت کې د یوې محدودې ډلې او یا یوازې د لیډر په لاس کې متمرکزه وي. مهمه خبره دا ده چې هیڅ داسې حکومت وجود نه لري چې د یوه فرد تر مطلق کنټرول لاندې وي. دولت یوه ډېره پرله پېچلې پدیده ده چې د یوه فرد په مطلق کنټرول کې نه سي راتلای، ځکه نو دوهمه درجه لیډران (لکه خارجه وزیران)، بیروکراټان او نور داخلي عناصر هم، حتی په ډېرو استبدادي سیاسي سیسټمونو کې، یو رول لوبوي.

له بلې خوا، په ډیموکراسي رژیمونوکې د خارجي پالیسۍ جوړول پرانیستې او ښکاره وي. د مقننه هیأت غړي [پارلمان]، میډیا، عمومي افکار او مخالف ګوندونه د خارجي پالیسۍ په جوړولو کې اثر ښندلای سي. د امریکې پخواني جمهور رئیس بیل کلینټن د پراخو

ازمایښتونو د منع کولو معاهده د Comprehensive Test Ban Treaty امریکې د متحده ایالاتو له خوا لاسلیک کړه، مګر د امریکې سنا د ده له نظر سره موافقه نه درلوده او په ۱۹۹۹کال کې ئې د هغې معاهدې له تصویب څخه ډډه وکړه.

خو سربېره پر دې هم، په ډېرو ډیموکراټیکو دولتونو کې د خارجي پالیسۍ تعینول د مملکت د لوړ لیډرشیپ په لاس کې وي. په پارلماني سیستم کې، چې صدراعظم په پارلمان کې د اکثریت د ګوندغړی وي، د خارجي پالیسۍ په جوړولو او تصویبولو کې د بېلې پروسې څخه کار اخیستل کېږي. یوازې دا چې یو دولت ډیموکراټیک سیستم لري، د دې معنی نه لري چې د خارجي پالیسۍ جوړلو پروسه به ئې هم د نورو ډیموکراټیکو سیستمونو سره یو شان وي.

## د حالت ډول (نوعیت) او د خارجي پالیسۍ پروسه:

د خارجي پالیسۍ د جوړوني پروسه د هیوادونو په دننه کې هم د حالاتو په تغیر سره توپیر کوي. د مثال په توګه، په بحراني او غیربحراني حالاتو کې پالیسي جوړونه فرق کوي. بحراني حالت crisis situation هغه وخت منځته راځي چې تصمیم نیوونکي (۱) له یوې ناځاپي پېښې سره مخامخ سي، (۲) د تهدید (په تېره بیا نظامي تهدید) احساس وکړي، او (۳) داسي فکر ورته پیدا سي چې د تصمیم نیولو له پاره لږ وخت لري. هر څومره چې یو له دغو فکتورنو څخه قوي وي، په هماغه اندازه بحران هم شدید وي.

په غیر بحراني حالاتو کې زیات وخت ډېر کسان د پالیسیو په تشکل کې برخه اخلي، مګر په بحراني حالت کې ښایي یوازې لیډر او د ده د مشاورینو یوه وړوکې حلقه د پالیسۍ جوړوني کنټرول په لاس کې واخلي. د دې کار یو دلیل دا دئ چې په بحراني حالاتو کې عامه خلګ او هم نور داخلي سیاسي عاملین د لیډر د ملاتړ کولو میلان لري. د مثال په توګه، د امریکې په متحده ایالاتو کې د سپټمبر د یوولسمي تر حملو وروسته د جمهور رئیس بوش ملاتړ ډېر زیات وو.

## د پالیسۍ ډول (نوعیت) او د خارجي پالیسۍ پروسه:

د خارجي پالیسۍ په هکله تصمیم نیول په موضوع پوري هم اړه لري. هغه موضوعات چې پر خلګو باندي لږ اثر لري او یا ئې اثر روښانه نه وي، د سوچه او خالصي خارجي پالیسۍ اصطلاح ورته کارول کېږي. د اجرائیه قوې محدود کسان د دې ډول پالیسیو په هکله تصمیم نیسي چې داخلي مخالفت یا ډېر لږ وي او یا هم څوک په خبر نه وي. د مثال په توګه، د امریکې جمهور رئیس بوش په ۲۰۰۴ کال کی د شمالي اتلانتیک سازمان (ناټو NATO) ته د نویو اوو غړو (بلغاریا، ایستونیا، لاتویا، لیتوانیا، رومانیا، سلوواکیا، اوسلووانیا) له ورداخلېدوسره موافقه وکړه. سره له دې چې د ناټو په تړون کې د دې هیوادو

ورزیاتولو د امریکې د متحده ایالاتو دفاعي مسؤلیت نور هم ډېر کړ، د امریکې په دننه کي چنداني څوک په خبر هم نه سول. میډیا ډېره لږ توجه ورته وکړه، او نظر پوښتونکو pollsters هم ځانته دا تکلیف ورنه کړ چي د عامه خلګو نظریات په دې هکله وپوښتي. د امریکې د سنا مجلس هم چنداني دلچسپي ورسره ښکاره نه کړه او په ناټو کې دا نوی زیاتوب د رایو په اتفاق تصویب کړ.

په مقابل کي بیا، هغه خارجي پالیسي چي د امریکې په داخل کي پر امریکایانو ښکاره او مستقیم اثر لري، د خلګو زیاته توجه جلبوي. د دې ډول پالیسیو په هکله د تصمیم نیولو پر وخت، د پارلمان غړي، ذینفع ګروپونه interest groups او د خارجي پالیسۍ جوړولو نور ګروپونه فعال کېږي. په نتیجه کي لیډران نه سي کولای د خپلي خوښي خارجي پالیسي جوړه کړي. خارجي تجارت یو له هغو موضوعاتو څخه دئ چي ډېره توجه جلبوي، ځکه چي د خارجي تجارت په هکله تصمیم پر بین المللي روابطو او هم پر داخلي اقتصاد تأثیر لري. د مثال په توګه، سره له دې چي جمهوررئیس بوش د ناټو د پراختیا تصویب له کانګرس څخه په اسانۍ تر لاسه کړ، د تجارتي معاهداتو په برخه کي ئې ډېري هلي ځلي وکړې چي له کانګرس څخه [د تجارتي معاهداتو په هکله] د مذاکراتو پر وخت زیات اختیارات تر لاسه کړي. سره له دې چي د ده ګوند [جمهوري غوښتونکي ګوند] په کانګرس کي اکثریت درلود، جمهور رئیس بوش په خپله شخصاً کانګرس ته د قانون ګذارانو [legislators] د ملاتړ تر لاسه کولو له پاره ورغی. بیا ئې هم په ولسي جرګه کي د بېخي لږو رایو په تفاوت (۲۱۲-۲۱۵) دا اختیارات تر لاسه کړل.

**د خارجي پالیسۍ جوړ ول: سیاسي کلتور:**

د هر هیواد خارجی پالیسي د هغه د سیاسي کلتور انعکاس دئ. دا مفهوم د یوې ټولني عنعنوي ارزښتونه او بنسټیز عادات او رواجونه تمثیلوي چي ډېر ورو او سوکه تغیر کوي. لیډران پالیسۍ داسي جوړوي چي د دوی د ټولني له سیاسي کلتور سره متناسبي وي ځکه چي لیډران هم له خپلي ټولني سره په دې ارزښتونو کي شریک دي. حتی که دوی په یوه ټاکلي ارزښت کي له ټولني سره شریک هم نه وي، لیډران د داسي پالیسیو څخه ډډه کوي چي د ټولني د سیاسي کلتور سره په ټکر کي راځي. د یوه هیواد د سیاسي کلتور د تحلیل له پاره، تاسي باید دا پلټنه وکړئ چي د هیواد خلګ د ځان او هیواد په هکله څه ډول احساس لري، د نورو هیوادو خلګو ته په کومه سترګه ګوري، په نړۍ کي د خپل هیواد د رول په باب څه فکر کوي، او د دوی په نظر اخلاقي سلوک او عمل څه دئ.

دا چي امریکایان او چینایان د خپلوځانونو په هکله څرنګه احساس لري،

او د نورو په وړاندي خپلو ارزښتونو ته څرنګه ګوري، ښه مثالونه برابروي. امریکایان او چینایان دواړه په دې قانع کړه سوي دي چي د دوی خپل کلتورونه تر نورو عالي دي. امریکایان دې ته American exceptionalism امریکایي بېساریتوب وایي. د همدې انګېرني له مخې، د مثال په توګه، یوې احصائې ښودلې ده چي په سلو کي ۸۱ امریکایان پر دې موافق وه چي و نوري نړۍ ته د دوی د ارزښتونو خپرېدل مثبت اثر لري. د ځان لوړ بللو superiority مشابه احساس په چینایانو کي هم وجود لري چي پر چین تمرکز Sino- centrism ئې بولي. چینایان خپل ځانونه او خپل هیواد د نړۍ سیاسي او کلتوري مرکز بولي.

امریکایان او چینایان بیا پر نورو باندي د خپل سیاسي کلتور د تحمیلولو په برخه کي یو له بله توپیر سره لري. امریکایان ځیني وخت پر نړۍ باندي د امریکایي ارزښتونو د تحمیلولو په برخه کي د مذهبي مبلغینو په شان تعصبي لېوالتیا ښیي. د امریکې د سیاسي کلتور د همدې اړخ له امله، د امریکې متحده ایالاتونه یوازي د افغانستان او عراق رژیمونه ړنګ کړل بلکي ډیموکراټیک حکومتونه ئې هم پکښې راوستل. داسي شواهد هم سته چي د امریکې د متحده ایالاتو حکومت د خارجي مرستو تصمیم هم د بشري حقوقو د امریکایي مفکورې پر اساس نیسي.

پر نورو باندي د خپلو ارزښتونو د تحمیلولو په برخه کي د چینایانو تفکر بیا بل ډول دئ. سره له دې چي چینایان په خپل کلتور باندي تر حد زیات افتخار کوي، داسي تاریخي شواهد وجود نه لري چي دوی دي پر نورو باندي د خپل کلتور د تحمیلولو هڅه کړې وي. دلیل ئې تر یوه حده د کانفیوشنیزم Confucianism پر اصولو ولاړ دئ چي په هغه کي باید څوک خپل عقاید پر نورو په زور او جبر تحمیل نه کړي. همدارنګه، له چینایانوسره داسي فکر هم سته چي د دوی کلتور دومره عالي دئ چي «وحشیانو barbarians» ته ئې درک کول ګران کار دئ. ځکه د دوی په فکر وحشیان باید خپل سر ته پرېښوول سي. [چینایان د غیرچینایي خلګو له پاره د وحشي کلمه استعمالوي].

## خارجي پالیسي جوړوونکي اکټران:

د امریکې پخوانی خارجه وزیر هینري کیسنجر په ۱۹۸۲ کال کي لیکي: "واشنګټن د روم و یوه سټېډیوم [د مسابقې میدان] ته ورته دئ چي په هغه کي ګلادیاتوران جنګ سره کوي". د دې تشابه له مخې، خارجي پالیسي جوړول رشتیا هم یوه ارامه پروسه نه ده. د خارجي پالیسی په جوړولو کي بېلابېلي مفکورې تصادم سره کوي، او په جوړولو کی ئې سیاسي قدرت او سیاسي مهارت مهم رول لري.

## د سیستم په سطحه (له زاوئې څخه) کي د پالیسی تحلیل:

هیوادونه په بنایي په تیوریکي لحاظ آزاد وي چي د خارجي پالیسی په برخه کي د خپلي خوښي تصمیم ونیسي، مګر په عمل کي د یوې بریالی خارجي پالیسی غوښتنه دا ده چي د بین المللي سیستم واقعیتونه په نظر کي ونیول سي. د مثال په توګه، د مکسیکو جمهور رئیس ویسنټ فاکس Vicente Fox د امریکې د متحده ایالاتو هغه پلان چي غوښتل ئې د دواړو هیوادو پر سرحد دېوال جوړ کي، رد کړ او هغه ئې «سپک او شرم آوره» کار وباله. مکسیکو د یوه مستقل هیواد په توګه کولای سوای د دې مانع د مخنیوی له پاره له زوره کار واخلي. مګر دا کار به بې ځایه وای ځکه چي دا د اوسني بین المللي سیستم یو واقعیت دئ چي د امریکې د متحده ایالاتو نظامي قدرت تر مکسیکو ډېر زیات دئ. ځکه نو د بین المللي سیستم واقعیتونه دا حکم کوي چي مکسیکو و خپل هدف ته د رسېدلو له پاره د نورو نرمو لارو څخه کار واخلي او امریکا په دې قانع کړي چي د دیوال جوړول د دواړو هیوادو په ګټه نه دي.

د سیستم په سطحه کي تحلیل System-level analysis پر خارجي پالیسیو باندي د خارجي ممانعتونو او محدودیتونو تحلیل ته توجه کوي. دا د نړیوال سیاست د تحلیل یو روش دئ چي د سیستم [یعنی یو سیاسي سیستم] اجتماعي، اقتصادي، سیاسي او جغرافیوي مشخصات او پر هیوادونو او لیډرانو باندي د هغوی اغېزې تر څېړني لاندي نیسي.

## ساختماني [ساختاري] مشخصات:

ټول سیستمونه، لکه بین المللي سیستم، د یوه مملکت سیستم، او یا یو محلي سیستم لکه په پوهنتون کي د بین المللي روابطو کلاس [ټولګی]، ځان لره د تخیص وړ مشخصات لري. د دې مشخصاتو له ډلي څخه دوه ئې زموږ د تحلیل له پاره زیات عملي اهمیت لري. یو دا دئ چي واک authority په بین المللي سیستم کي څرنګه تنظیم سوی دئ او بل دا چي په سیستم کي اکټران [عمل کوونکي] څرنګه عمل کوي.

په بین المللي سیستم کي د واک په تنظیم او ساختمان کي تغیرات راروان دي او زیات تحلیلګران په دې عقیده دي چي د هیوادونو استقلال مخ پر زوال دئ. حتی ډېر غښتلي هیوادونه لاهم د بین المللي سازمانونو له خوا وضع سوو قواعدو او بین المللي قوانینو ته غاړه ایږدي. هیوادونه د بین الحکومتي سازمانو Intergovernmantal Organizations (IGO) د حکمروایي سره مقاومت کوي او ځیني وخت ئې ردوي، مګر ورځ په ورځ ئې د منلو پله درنېږي او ډېر هیوادونه غاړه ورته ایږدي. د مثال په توګه، د نړۍ د تجارت سازمان the World Trade Organization (WTO) په ۲۰۰۶ کال کي، د امریکې د متحده ایالاتو په ګټه داسي فیصله وکړه

چي ګواکې د اروپا اتحادیه European Union (EU) د روغتیايي دلایلو په پلمه و اوروپا ته د امریکې د خوراکي موادو د وارداتو مخه نیسي. مګر په همدې کال ئې د اروپايي اتحادئې د هغه شکایت ملاتړ وکړ چي ګواکي د امریکې متحده ایالات د مالیاتو له لاري د بوینګ الوتکو جوړولوشرکت ته سبسدي ورکوي. دا کار د نړۍ د تجارت د سازمان WTO د اصولو له مخي د اروپا د اېربس الوتکو جوړولو شرکت په مقابل کي له بوینګ شرکت سره د امریکې د حکومت مرسته ده. [یعنی په دې صورت کي د ازاد رقابت په بازار کي د بوینګ شرکت تر اېربس مخته کېږي ځکه چي د بوینګ شرکت سره د امریکې د سبسیدۍ له امله د دوی الوتکي ارزانه تمامېږي.] په دواړو فیصلو کی بایللي اړخ غومبر (بوڼېزی) وکړ او داسي اشارې ئې وکړې چي ښايي دا فیصلې ونه مني. مګر تاریخ ښیي چي هیوادونه بالاخره د WTO د فیصلو سره ځانونه عیاروي. امریکایان، لکه د نورو هیوادو خلک، د خپل استقلال په برخه کي ډېر حساس دي، مګر بیا هم ورځ په ورځ په زیاتېدونکې توګه دا مفکوره مني چي د IGO تصمیمونو ته باید غاړه کښېښوول سي.

**اقتصادي واقعیتونه:**

د بین المللي سیستم د اقتصادي واقعیتونو په نظر کي نیول له هیوادونو سره په تصمیم نیولو کي مرسته کوي. دا کار په نړیوال سیستم او سیمه ییز سیستم کي یو شان دئ. د مثال په توګه، کله چي تاسي خپل تحصیلات پای ته ورسوی نو ډېر امکان لري تاسي یو کار پیدا کړئ او د خپل پاته ژوند زیاته برخه به کار وکړئ، نه دا چي هغه څه وکړئ چي ستاسی زړهٔ درته وایي. تاسي به یقیناً دا کار ځکه وکړئ چي ستاسي د سیمه ییز سیستم اقتصادي واقعیتونه دا ایجابوي چي تاسي د ژوند د اړتیاوو د پوره کولو له پاره پیسې وګټئ. بین المللي سیستم هم په همدې شان باید د ژوند اقتصادي حقایق په نظر کي ونیسي.

یو پر بل، باندي تکیه کول interdependence یو له هغو اقتصادي واقعیتونو څخه دئ چي د دولتونو پر اعمالو باندی اغېزه ښندي. د مثال په توګه، ډېري څېړني دې نتیجې ته رسیدلي دي چي اقتصادي وابستګي د سولي په لاره کي ځکه مرسته کوي چي هیوادونه یو له بله سره پېژني او د خپلي نېکمرغۍ له پاره یو او بل ته سره اړ دي. د امریکې او چین تر منځ بې ساري لوړ تجارتي کسر (چي په کال ۲۰۰۷ کي ۲۵۶ بلیونه ډالره وو) یو پر بل باندي د تکیه کولو موضوع روښانه کوي. د امریکې حکومت کولای سي چي پر چین باندي ګمرکي تعرفې لوړي کړي او ځیني اقتصادي بندیزونه پر ولګوي. دا کار به په یقین سره د چین اقتصاد ته تاوان ورسوي، مګر د امریکا اقتصاد ته به هم تاوان پېښ کړي. د چینایي تولیداتو معادل امریکایي تولیدات ډېر ګران تمامېږي. په بازار کي به د ماشومانو د بازیو شیان، برقي سامانونه او نور ډېر تولیدات، چي امریکا ئې له چین څخه واردوي، له منځه ولاړ سي. ډېر امریکایي بزنیسونه او د هغوي اسهام stocks به تاوانونه ووینې؛

ځکه ډېرو امریکایي شرکتونو په هغو چینایي کمپنیانو کي سره ایه ګذاري کړې ده چي د امریکې له پاره شیان تولیدوي. لنډه دا چي، د امریکې متحده ایالات کولای سي پر چین باندي تعزیرات [د ګمرکي محصول لوړول او نور] وضع کړي، مګر دا کار به لږ ترلږه داسي معنی ولري لکه امریکا چي خپله اقتصادي پښه په خپله په تېشه ووهي.

د طبیعي منابعو تولید او مصرف هم د بین المللي سیستم پر عملیاتو اثر لري. له دې لید perspective څخه ویلای سو چي په ۱۹۹۰ کال کي پر کویټ باندي د عراق د حملې په وړاندي د امریکې عکس العمل د منځني ختیځ د تېلو په خاطر وو. پر کویټ باندي د عراق حمله د فارس د خلیج تېل لرونکي سیمې ته، او همدارنګه، د امریکې او د امریکې اقتصادي ملګرو ته ګواښ وو. لکه د امریکې پخواني خارجه وزیر جېمز بېکر James Baker چي په هغه وخت کي خبریالانو ته وویل: "د صنعتي نړۍ اقتصادي ښارګ [د فارس] تر خلیج تېرېږي، او موږ یو دیکتاتور ته اجازه نه سو ورکولای چي ... پر دې اقتصادي ښارګ باندي چارزانو کښېني".

له بلي خوا، امریکایي مقاماتو په تکرار سره دا خبره رد کړې ده چي د ۲۰۰۳ دعراق جګړه د تېلو له پاره وه. د امریکې د دفاع پخواني وزیر رمسفیلډ Rumsfeld، د مثال په توګه وویل چي پر عراق باندي د امریکې حمله (له تېلو سره هیڅ ارتباط نه لري). سره له دې هم، ډېر تحلیلګران په دې عقیده دي چي تېل د عراق د جګړې اساسي فکتور وو. ځیني په دې عقیده دي چي سعودي عربستان، کویټ، قطر او د سیمې ځیني نور تېل لرونکي هیوادونه دمخه لا د امریکې تر نفوذ لاندي وه. امریکې په ثابت قیمت وصنعتي هیوادو ته د تېلو د دوامداره جریان له پاره وغوښتل عراق هم تر خپل کنټرول لاندي راولي. نور تحلیلګران بیا په دې باور دي چي د امریکې له پاره د عراق د جګړې محرک د قدرت لوبه وه. د یوه امریکایي کارپوه په قول: "د عراق کنټرول د تېلو څخه د قدرت په توګه د کار اخیستلو په باب دئ، نه د تېلو څخه د سونګ د موادو په توګه د کار اخیستلو په باب. د فارس پر خلیج باندي کنټرول یعني پر اروپا، جاپان او چین باندي کنټرول درلودل دي. دا داسي معنی لري لکه موږ چي د تېلو د پایپ پر خوله لاس نیولی وي".

داسي ګومان هم کېږي چي، د امریکې له خوا د عراق د یرغل په وړاندي د فرانسې، روسیې او ځینو نورو هیوادونو مخالفت د تېلو سره ارتباط درلود. لانجه په دې کي وه چي د دې هیوادونو د تېلو شرکتونو په عراق کي د تېلو د پلټني او تولید د قرادادونو په هکله اندېښنه درلوده. د تېلو د یوه کارپوه په قول: "د دې هیوادونو مالي ګټي د عراق په موجوده حکومت کي وې. دا ګټي دومره جزیي هم نه وې ... که دا تېل تولید سوي وای نو به په ورځ کي ۲.۵ ملیونه بېلره وای [چي په ورځ کي ۷۰ ملیونه ډالره کېږي]".

نور بیا ...

*****



# Kandahar

Bi-Monthly Magazine of Kandahar information & culture Department

